چې دلداري زده کوم غېرې د دلبر له راشم
چې دلبر ستايمه د خپل غزل هنر له راشم
لکه د درد د خپل پرهر د غېرې والوزمه
حالات مې ژوبل کړي په بېرته خپل پرهر له راشم.

# سائل د اولسي احساساتو ترجمان

سائل یو باشعوره شاعر دے. هغه د تولو نه وړومبے دا فیصلے کړی دی. چه څه لیکل پکار دی او څنګه لیکل پکار دی. او بیا ئے په ښتینے جذبه او د زړه د اخلاصه شعر لیکلے دے. د هغه د مشاهدے هوا د هغه د تخیل په رنګ زار کښے د خپلو تولو هنری نزاکتونو او ښائستونو سره ګیرچاپیره ګرځیدلے ده او بیا ئے د هغه شعر له داسے شکل ورکړے دے چه هر زړه، هرے جذبے او هر نظر ته په یو وخت هم ښکلا بخښی او هم رڼا.

د خپل اولس، ژوند، وطن او زورلو او زپلو خلقو د پاره د هغه په زړه کښے بے کچه مینه ده. هم دغه وجه ده چه د هغه شعر په هغه تولو ښائستونو او رنګونو، رناګانو، سینګار دے. کوم چه په شعر کښے هم ژوند اچوی او هم د ژوند ولوله. د سائل شاعری په ډیره نازولے ادا د خپل لوستونکی نه تپوس کوی (وایه کنه شاعری څه ته وائی) او دا خکه چه هغه د وخت د لحظے لحظے د درزیدونکی زړه په ساز نغمه زن دے او هغه په هیڅ یو زړه کښے هم چرته یوه جذبه پرکاله یا اوده نه پریږدی.

شمس القمر اندیش

۱۰ جنوری ۱۹۹۳ء

مردان

د کتاب نوم

# دوير په چم کښې وار د نغمو دے

ليکونکے

رحمت شاه سائل

*


ورُمبے شمير ——— پنځه زره

دويم شمير ——— دوه زره
۱۹۸۹ء

دريم شمير ——— يو زر

——— جنورى ۱۹۹۳ء

څلورم شمير ،يو زر

پينځم شمير ——— نومبر ۱۹۹۸ء يو زر

شپږم شمير ——— اګست ۲۰۰۲. يو زر



فون نمبر
09322-332725



بيعه ——— ۶۰/ روپئ

چاپ : دانش کتابخانه، ډهکي نعلبندى قصه خوانى

# تړون

د هغو انقلابي شاه زلمو

په نوم

څوک چې ویرونه په نغمو بدلول غواړي

# فیصله

ظالم ته که ډیرناز دے په دارونو په دامونو
په ظلم په وحشت په زولنو په زنځیرونو

زمونږ د ژوند پښتولیونو فیصله دا ده
یا سر د تیغ نه تیر او یا معراج د ارمانونو

# درکے پانڑه

# دَ انقلاب سندره

هغه د زلمو میدان ته سره جنګه را اوویسته
خنبلۍ ئې د ننګ په کټورو کښې د ژوند مست شراب

جنګ دے د ظالم اؤ د مظلوم آخري جنګ دے نن
بیا نیکي زلمي په وینو سرو د تاریخ نوے باب

شور دے یو آواز د انقلاب دَ انقلاب آواز
او شوه فیصله آخري د رځ دَ دَ حساب کتاب

# دَاحساس عاجزي

په ننني دنيا کښې که يو خوا انساني ژوند د مسلسل بدلون د عمل سره مخامخ دے
نو بل خوا زمونږ غونډے معاشره په
ماحول کښې آزادو، اولسي، قامي او انساني
فکرونو ته زولنې او زنځيرونه پراته
دي. په يو آزاد ملک کښې د تحرير او تقرير
د آزادۍ تصور د ماريښه شوے دے۔

هر کله چه زه د خپل شاعرۍ
د دريمې کتاب اولس ته د وړاندے کولو نو
په دے موقع دا هم مناسب گنړم چه که څه

احساس سرکند د نه خپلو لوستونکو ته
اوګرځوم احساس چه په دے موقع
راسره مل دے - زما خیال دادے چه د
خپل چاپیره چل دننه د خپل ماحول په
اثر د خپل سماجی او اولسی ژوند د ډیرے
او صحیح مطالعے نه پس شعر نیکلو رښتونی
شاعرئ د تخلیق سبب ګرځیدلے شی. فن
د ژوند نه زیږیږی. او بیا د ژوند
په سترګو ئے ورته ګوری.

نو زما شاعری څه
"داد" یا "بے داد" نه غواړی. بلکه دا زما
د ژوندی احساساتو اظهار دے. او په
غوښه ژبه د ژوند قیصه ده. زه نه
یم خبر چه ما فنی لوازمات څومره حده
پورے پوره کړی دی. او دا هم نه
شم وئیلے چه ما د ژوند ون دنا دے د هر
نه ترګو مه حده پورے پلو پوره نه
کړے دے. زه دا ګنړم چه د پوے
اوږدے نوآبادیاتی غلامئ تاریخ او
د نوی نوآبادیاتی نظام د دننه دننه انسان
ذهنی طور باندے مات کړو او روحانی
طور باندے تږے دے. د هغه د پردے

دومره ژور درد دے چه د دُنیا ټول المناک
سازونه که راغونډ کړے شي نو هم به
د دغه درد سمه ترجماني او نه کړے شي.
ورسره ورسره چه د حقیقي آزادئ او
غلامئ د پاره کوم مضبوط خواهش او
اراده په هغه کښې راپیدا شوے ده. هغه
هم لکه ژمونږ د غرونو د چړونو ډ ادبو په
هیڅ د ایسارېدو نه ده. هرکله چه سړے د
دغه صورتِ حال احساس او کړي نو د دے
درنه ذمه وارئ په څنګ کښې د فن عاجزي سرګنده
شي. زما شاعري هم د دغه شان ، عاجزئ ،
یوه چغه ده. —

په کومه خاوره چه ما
خرپوسے کړي دي. کوشش مے کړے دے
چه د هغې ډ زړه دړزا واورم. کوم اولس
او کوم ماحول چه زما شعور او ذهن ته
هرڅه را بخښلي دي. کوشش مے کړے دے چه
هغه ته هغه ټول څه ورواپس کړم چه ما نه
ئے را کړي دو.

یعني د خپل ماحول
تیارے او رڼا ګانے ، ستنئ او اراده
مایوسئ او رجائیت هرڅه وړاندے

کړم۔

خبرنهٔ يم چه تاسو ته

به دے کښے کوم کوم څيز ونه ښکاره شي

اؤ هغے هم دا زما د شاعرئ د دړو مبنے

کتاب دے۔

ساٸل

ے موږ زېږېدلي په غمژن وطن غمژن خلق
موږ ځېدا د مينې د سندرونه هم وېرنه که

دا زما د ۱۹۸۸ سنه د غزل يو شعر دے. کله کله د مشرقي قامونو ژوند عموماً، او پښتون قام ژوند خصوصاً د سړي په ذهن کښې دا يقين پوخ کړي. چه د دے ځائے د فنونِ لطيفه ډېرے څانګے نه چه څه تکيږي يا زرغونيږي د حُسن نه به يئے غم او اوښکے څاڅي لکه چه وېرا او ژړا د ازل نه تر ابده زموږ د ژوند برخه وي - زموږ سازونه، سندرو. زموږ آرټ او ادب ته به هله زموږ زخمونه موسيږي. چه پکښ هر رنګ غمژن وي او هر درد پکښ ستموږغه کوي.

ما چه د دے روايت خلاف خپلو غمژنو ساندو له سنوم "د وير په چم کښې وارد نغمود ے" کيښودو او کتاب م چاپ شو نو لائے ما خپله هم سمه تماشه نهٔ وه کړے چه د دغے کتاب سره په جيل د سنه شوم. اګرچه زهٔ به جيل کښې يوازے نهٔ وم څو

ملګري نور هم راسره وو. مقدمه په ټولو یو شان چلیده الزامونه هم په ټولو یوشان لګیدلي وُو. خو عجیبه دا وه چه زما نغمې د هر ملګري د جُرم ګواهانې وې. د محبت دغه نغمې، د وطن دغه سانندې او سندرې څه ظالمانې وې چه یو طرفته یې زما او زما د ملګرو خلاف د جُرم ګواهي ورکوله. بل طرفته خپله هم د وطن دُشمنۍ او اُولس دُشمنۍ د تورو لاندې خندیدې. او بل طرفته یې د وطن د اُولس په روحونو او ذهنونو کښې د محبت جذبې شعور او درد لا رهم پیدا کوله او د اَبدي سپرلي د ګلونو کرېږې یکښې کولو.

زهٔ خو د لسو میاشتو د سند ریزې مقدمې او څو میاشتو د سزا او نهٔ سزا د انتظار نه پس سره د ملګرو رها شوم خو زما دا د ې کتاب کتابت لا اوس هم قید دے. کاش چه ما د دې کتاب د دوئیم چاپ دیاره د دې مقدمې پوره حال قلم بند کولے شوے. خو دا ے په دې مضمون کښې خفکه کړنه ده چه دا خان له یو داستان او یو کتاب دے که ژوند وفا کوله نو یوه ورځ به یې پوره حال اولس ته پیش کړم.

ے غضب خو دا قیامت خو دا دے کنه
چه هم م وژني هم م نهٔ پیژني

زهٔ چه کوم مجسټریټ ګرفتار کړے وُوم. هغهٔ ته ما په منت او وے چه دا زما د چاپ شوی کتاب کتابت دے. هغه چاپ کتاب به تاته راورم. دا کتاب ما ته واپس راکه.

خو ځکه چه هغه د سره کتابت نهٔ پېژندهٔ. او زمونږ په خبرو یې باور اونهٔ کړو. هغهٔ هسې هم زمونږ کور کښې ډیر کتابونه اوړی دو. هغه کتابونه کوم چه تر دغه وخته زمونږ د ژوند لویه سرمایه وه. ګویا په بازارکښې په قانونی توګه خرڅیدونکی کتابونه چه ما په ډیر شوق په پیړه موده کښې راغونډ کړی وُو.

د یوے مقدمے د ضرورت د پاره داسے لوړهٔ. ځکه زمونږ په وړه غونډه ذاتی لائبریرے پاکه پریوتے وی. نو ځکه هغهٔ کښې چه په سے کتابونو کښې داکښے مادهٔ داسے تخریب په کوتو راغلے دے. چه زمونږ د مقدمے د ټول پُراسراریت رنګ او ډول به پرے جوړ شی او د کورټ (سپیشل ملټری کورټ) ممبران به ځکه د یو شهنشاه د کاردارانو د اخیز د ملزم د تخریب نښه اوګڼړی. د یو آزاد مملکت د عدالتی حاکمانو، د شعر و ادب سره د بے نیازی او سلوک ته چه سرے اوګوری نو د علی خان دا شعر یې بے اختیاره د خولے نه اوځی چه،

ے پښې شو علی خان په هسے شوخو خونه شوړو
وژله یې زړهٔ نهٔ وُو پرے یې لور او نکوو

یو ځل ما د چارسدے د مزدورانو په یوه جلسه کښې نظم اووے. سحر په پېښور کښې خبر شوم چه زمونږ خلاف دفعه درج شوے ده. زمونږ یو وکیل دوست د هغے د فعے سره د الزاماتو نقل راوا خستو. په هغے کښې لیکلی شوی وُو چه شاعر د مزدورانو په جلسه کښې وئیلی وو چه هر فرعون، هر شداد، هر یزید، هر شمر

هرجابر هر هټلر ټول برباد ټول برباد - ما چه دا اولوستل منو اوم خندل - چه د سرکار د اهل کارو د فرعون او شداد. یزید دشمن جابر او هټلر سره څنګه رښته کیدے شي چه د شاعر خلاف یئے د یوے دامے دفعے تکولو تابیا کړے ده چه په وخت د ضرورت به په کار راشي.

ے د نوے نسل دے بیدار ژوندون ته لاړے نیسی
د وخت ردی خلق د وخت بدلون ته لاړے نیسی

زمونږ په وطن کښے د قومي ژوند د موجودګئ سره سره د انفرادي او اجتماعي حقوقو پیژندګلو او کیتلو د پاره سیاسي ډلے موجودے دي. ادبي تنظیمونه موجود دي. د طالب علمانو. مزدورانو، کسانانو تنظیمونه موجود دي، اخبارونه موجود دي، عدالتونه موجود دي، قانونونه موجود دي خو دلته د آرټ او ادب سره د غسے لوبے شوي دي او کیږي. خو دا هر څه کیږي. او هر څوک پرے خاموشه دي. د غوږ خبره داده چه د اخبارو کارتونسټ خو د مارشل لاء ایډ منسټریټر د یو سربراهِ مملکت، د یو سیاسي مشر یو لیډر شکل جوړولے شي، په کوم کښے چه هرچا ته تنقید په نظر راځي. خو یو شاعر په خپل شعر کښے د ټول اولس د زخم او اوښکو نقشه نه شي راښکلے. حال دادے چه دا دواړه فنونه د یو وجود نه زیږیدلي دي. صرف د اظهار لارے یئے بیلے بیلے دي. او د فن حقوق د هیڅ قسم تحریر

او تقرير نه زيات دَنثوے نړئ په آزادو ملکونو کښے زيات مسلّم ګڼړلے کيږي .

حالانکه دَ کارتهون فن وقتى او دَ يو فن کار دَ ذات پورے محدود وى - او شاعرى دَ شاعر دَ ذات منه وتے دَ پوره قوم او اولس او دَ ټول انسانيت امانت وى .

په پښتنى ټولنه کښے که هر څو لويئے لويئے شاعران زيږيدلى دى . او په روايتى انداز کښے دَ ضرورت په وخت پرے ډير لويئے لويئے خلق فخر هم کوى . خو زهٔ په دے وينا کښے هيڅ باک نهٔ کوم چه شاعر دلته خلقو دلوبو ټوټو يوه کهلونا ګڼړلے ده . او وخت ستيرے پرے کړے دے - دا عمل که هر څو زما سره هم ډير کړے شوے دے - او کله کله مِ دَ خپلو ډيرو خوږو لوستونکو او خوښوونکو نه هم ګيله پيدا شى چه کله کله راسره داسے توقعات وابسته کړى چه په ما ان ژړا راشى . خو بيا هم مجموعى طور خلقو زما سره انصاف کړے دے - ځکه ئے زهٔ تشکر او مننه کوم .

زما دا دے کتاب دَ دوئيم چاپ دَ پاره که زما دَ څو دوستانو اخلاص نهٔ وے نو دَ ډيرو لوستونکو دَ بيا بيا وينا باوجود ما دا کتاب نهٔ شو چاپ کولے - زهٔ په دے حقله خوش قسمته شاعر يم چه زما شاعرى دَ هر مکتبهٔ فکر خاوندانو نهٔ يوازے اوريدلے او لوستلے ده - بلکه

ستائیلے بے هم ده۔

ما دَ دے کتاب په ورومبي مضمون کښے وئیلي دو چه زمونږ دَ اولس زخمونه دومره زور دي چه په مخکښ یے دَ فن شسته مني هم دَ عاجزئ اظهار کوي۔ اولکه چه مخکښ مروئیلي ووچه دَ شعر دَ فن لوازمات څهٔ دي؟ په دے زهٔ نهٔ پوهیږم۔اوس هم وایم چه زهٔ دَ فن دَ دغو لوازماتو نهٔ یم خبرچه څهٔ دي او څنګه دي؟ خو دَ خلقو خوښے ارغوښتنے ته چه کورم نو واده شم۔ پخپلو چاپ کړو شعرونو م هم دَ شعرونو ګمان اوشي۔ اودَ ښورو لیکونو ان راپکښے هم پیدا شي۔

زما خپل خواهش نو دے شاعري چاپ کول دي۔ یو دا چه نو دے شاعري که چاپ شي محفوظه هم شي اوخلقو ته هم په وخت اورسي۔ خو د دے کتاب د دوئم چاپ زما دے حساب دوستانو او لوستونکو هغه غوښتنے او خطونه دي۔ چه زهٔ یے د دے کتاب په دوئم چاپ مجبورکړم۔

داکتاب چه په ورومبي ځل چاپ شو نو مارشل لا ر وه۔ دَ چاپ سره سم جیل ته هم لاړ۔ او خلقو ته هم اورسید و د دے کتاب شاعرئ دَ ټول اولس سره سم یونس کاله جد وجهد اوکړو او دَ ۱۹۶۹ء په الیکشن کښے خو د دے کتاب شاعري هغے خلقو هم اولس ته د ووټ غوښتو دَ پاره دَ ګان سره یوړه۔ چاچه پرے مقدمه چلولے وه۔

او هغه چا هم پخپل کار راوسته چا چه پرِ دَ پښتو اَو پښتون دَ توره ټکولو دَ پاره ګواهان پیدا کول.

" دا دَ تارِیخ جبر دے او جبر نازولے دے:

خو دَ اُولس شعور د تاریخ د جبرونه هم زیات نازولے او ختو

کهٔ پرون دغه شاعری چا دَ اُولس نه بیله ګڼړے شود۔

نو نن خو اُولس خان ته یو جمهوریت هم ګټلے دے. نن سبے ترِ هیڅوک نه شی بیلولے.

د رحمان بابا په قول.

ے توره زلفے یه مسپینو لیچو زانګی

خامارن دی د چندن په ونا خونو

سائل

۱ر جنوری ۱۹۸۹ء

# نظر ثانی

رښتیا به نه وي د رښتیا ویلو څه پاتې دي — خو نو په منځ کې د یارۍ کولو څه پلمې دي
په هر قدم ستم په هر ستم د پیاسه ستم — دلته د ښه ویلو ښیکلو څه پاتې دي
مې ګڼه چې کړه توله نړۍ سره غوغه — تا سره اوس د دغه اور د ژړلو څه پاتې دي

هغه چې لوړ شو په سرو د نوا د زړه د ختو
د دې تخم د دوبار کولو څه پاتې دي؟

---



# ولولې

د ذرې ذرې زړانه به نغمې د انقلاب جوړوم
ستا د ظلمونو د نیمونه به کتاب جوړوم

حلالوي چې مې په پټه څنه په ښکو جوړ د
د دې نظام له به دجل خانه قصاب جوړوم

---

## زمامینه

خپل منزل ته ځمه نه په تا یم نه په ځان یم
زه د انقلاب سندرې وایمه روان یم
بوغاځکې که سم د خپلې کورې پاکې ویښ یم
حُسن رنګ و بوئ اؤ تازګي د ګلستان یم

---

## زړُ

چه د مینې په مکتب کښې لیونے شوم
که حالا نو هر څو او د زلفو تړلے شوم
دے ترمځ ژوند لره پیغام د سپین صبا
چه زلے شومه قاتل د تورې شپې شوم

---

# احساس

هر ګُل په وينو سور دے ګلستان په وينو سور دے
اِحساس لکه شهيد د هر اِنسان په وينو سور دے
قربان د دے سماج د سندريزے اِرتقاء نه
زما پکښے لا هغسے ګريوان په وينو سور دے

---

# جرس

زۀ شاعر د خپل اولس، زۀ آمين د قام يمه
نۀ د چا پابند يمه، نۀ د چا غلام يمه
زۀ د جرس شور يمه، زۀ دَ انقلاب آواز
دغه ده ګناه زما، دغه مُړه بدنام يمه

---

ٹ دغه هرمړه!

# سورنمر

هغه دے سورنمر په راختو دے

صبر لوے شو    انتظار اور شو

احساس لمبه شو    رُوح سوے سکور شو

شعور پرهر شو    اسویلے شور شو

ژوندون زخمی شو    زړگے تکور شو

هغه دے سورنمر په راختو دے

انقلاب راغے وخت په سنگو دے

په کومو وینو    جوندے تاویږی

مستے خوانئ دی    پکښے د لمبیږی

ننگ په خوانئ دے    جذبے مستیږی

دنیا ورانیږی    که پاتے کیږی

فیصله کیږی    هرڅه چه کیږی

دَ دیر په چم کښے وار دَ نغمو دے

انقلاب راغے وخت په سنگو دے

تمبل عکیږی    دُرخو ودیږی

په ټول وطن کښے    نغمے خوریږی

زوړ او به کیږی    ضُم بوگنیږی

جرس ټنگیږی    مرهٔ بیداریږی

سپئ ټول غپیږی    کاروان تیریږی

چه سر تړکیږی شی ژوند د ټغو دے

انقلاب راغے وَخت په سنگو دے

۸، اگست ۱۹۷۰ء

○

یم ډې د زلفو د رسو به ارمان ! | به دغه دار د څو چوتو به ارمان
باد د وخت ډیرې وخته او ریږدو | زما ارمان د ریږدیدو به ارمان
ساقي ژړوندون بې لیونتوبه تیر شو | ستا د جامو نو لیونو به ارمان
چیرته قاتل حسن پیدا که عشقه! | دے زلمیتوب د قتلیدو به ارمان
د روح وطن مې شاهدے بے کالودے | د سرکوشونو د خیرو به ارمان
چه زلزلے به رقیبانو راشي | دې دوه زړګې د درزیدو به ارمان

مسکونے شپه د څو لمحو د ژوندون
ده د ترخو خوږو نغمو به ارمان



○

صبا ؤ هغه نه بکاریږي لیونو | عقل به د الاه د کښې تتلیږي لیونو
سترګے به ما تو ے تو ے کیږي لیونو | تو ے چه د سترګو مے یادیږي لیونو
هلته شوے به جم د رقیبانو زلزلے | دلته هغه دود زړونه درزیږي لیونو
څوک مے څه داور او یا د داره ویږي | مینه مے پښتو ده نه نو ریږي لیونو
پټ په پټ پیچونه کښې د سترګو دے ژوندون | خنیږه د جنت او کې پوهیږي لیونو
ګرم انتظار شپه د بیلتون چه چیپا | وهم راته خوږ ستار غلګیږي لیونو

حسن لیونے دے او هم عشق لیونے
دوه لیونی کله پو خدائے کیږي لیونو

○

حالات ګڼیادی ښکوی ے پہ فطرت ځکو نہ
زۀ ښکومہ پہ خپل خوار سپینۀ قسمت ځکو نہ
دلیونتوب علاج تہ ګورئ لیونو ملګرو!
چہ ښکومہ پہ زنځیرونو هر ساعت ځکو نہ
آشنا! کہ یو رقیب سراو خوری بل بہ هم پیدا شی
ښکول غواړی پہ سبق د رقابت ځکو نہ
نیت ئې معلوم دے لیں زما دیو نظرہ تنګ دے
خکہ ے داسے ښکوی موسم پہ نیت ځکو نہ
بیا مې آشنا! دلیونو ځغونہ دلے تښتے ؛
چہ ښکوی هم پہ شعور ستا نزاکت ځکو نہ
جانانہ! او وایہ ستا تال کومہ ګناہ کړیدہ
دا یسہ خونہ ښکوی ځوک محبت ځکو نہ

## دستور

حسن کہ قاتل د زړۀ او سترګو د شعور نشی
مینہ بے د دغې نہ ژوندئې پاتے کیدے نشی
نہ ګډ دستور دے مخ تہ پوز او ویسو د
هغګکہ نعم نہ ... شوکئې پټیدے نشی

# خپله خپله

تا ته د مرګ په خبرو کښې ثواب شته دے
ما ته د ژوند ژوند په خبرو کښې عذاب شته دے
مُلا ته حُورے زوتو عیش کوه عیش چنړوه
ما ته زما د زړه په درپ د پوهه رباب شته دے

---

# فرمائش

زما په دواړو اوګو نا ستو فرښتو اولیکئ
زما غزلے ګنهګارے په پښتو اولیکئ
د خدائے حضور کښې مے بس دا عمرنامه کیدوئے
دلته سو زیرمه بے وتے په لمبو اولیکئ

---

# یو شعر

راګیر چرته سازش کښې سره ګلونه د ازغو دی
که تا ؤ د مستاو سترګونه شپاو نه د ازغو دی

نن د حالاتو د چپې د لاندې ساه اخلم هر څه چې کیږي خو نامه مې د اشنا اخلم

د چا لعلونو، و ګلونو ته پسخیږم نه زه کانړي بوټي د خپل غرا و د بیدیا اخلم

د چا د ښار ښاپېرۍ څه توم که ډېر ښکلې شي زه د خپل غزل ته ښتا د سترګو نه ښکلا اخلم

وخت د خندنه دې خوځاږي د راته او خندو د زړه کې داغ له ترینه لږ د شان رڼا اخلم

د مینې د دستور مو خوښ شو مینا نو که نه هنده بنیرې اخلي له ما نه تر دعا اخلم

د اشنا یاده د ثواب د لاسه ډېر غریب یم
یوه بوسه درنه په بیعه د ګناه اخلم

# اشنا

نن د حالاتو د چپې د لاندې ساه اخلم
هر څه چې کیږي خو نامه د اشنا اخلم
لږ را داړه وه خمار خمار ملالې د ستر ګې
د تهمت داغ له ترینه لږ شان رڼا اخلم

# دمه او شاعر

دغ په میخانه کښې د جامونه اوړې راوړي
په ښکلو سرو منګو کښې د زړونو اوړې راوړي
کوي د تبسم سره د شونډو ویښ پښتونړي
تاویزې په بارخو کښې د خالونه اوړې راوړي
د حسن په صبا کښې د خندا رګه کښې ئے
د حسن تماشې ته د کتونه اوړې راوړي
د شمع غوندې اور دې په خپل سر دې نګولے
لمبو د تخیل ته د خیالونه اوړې راوړي
نه هم د رنګینه زمانې زړه ئے بیو وجه د ئے
بس ستا د مینې کور کښې د مستونه اوړې راوړي
داستا ښکلې ځوانی اخته نادیده نادیده کیګي
داخته د نادیده زړه په لاسونو کښې لو ــ بیګي

پکار ده چه ته هم د چا د مینې دنیا کښې وې
د مینې په دنیا کښې د خیالونو شهزادګئ وې
په زړونه او زړه په پاکو دینو کښې ګلګون وې
د حسن ملکه دې د نازونو ښاپیرئ وې
مسکا لکه د برق دې په دریځو د عظمت کښې
د زړونو په دړه دونو کښې د خوږو سر ځپئ وې

د سترګو اشارے دِ دَ سرونو په بدل دے
هر ناز هره اَدا دِ هیبتناکه شان سبلۓ دے
په سترګو کښے دِ سترګے د زړګو اوده کیدلے
دا سترګے دِ دَ خوږ زړګی دَ سرو دیوو بالۓ دے
نۀ حُسن فروشه ئے حسینه ئے جینۍ ئے
د حُسن بدنامی کوے داوَ ے لیونۍ ئے

## جواب

نۀ ذره یمه زۀ روح یمه زۀ مینه یم ښکلا یم
زۀ ګل یمه زۀ پرخه یم زۀ باد نسیم صبا یم
د سترګو کیهون یم په هر لاس کښے اورم راوړم
دَ زړو د مجنون د ناز بده غیږے لیلا یم
دَ وخت په زولنو کښے د تقدیر یوه قیدی یم
دَ حسن سرکشۍ کښے د خپل زړګی سزا یم
د ژوند په چاپیرچل کښے یو رنځوره مجبوری یم
د غم په دنیاګۍ کښے یوه درکه تمنا یم
په قول د انسان د انسانی سترګو نظر یم
د دوه زړونو ترمنځه یوه لوبه مدعا یم
نۀ هم محسوسوم چې د احساس غیږ کښے اوده سوے
بابا نمه یو ځے د حسه په لو نهه مشو
زۀ هغه د چا ذکر یوه نیاز بینه سان د پښو ووم
زۀ هغه جرے اَشنا د چا د زړۀ یوه قطره ووم
زۀ هغه د سترګو نور ووم په سینه کوټے نوښته
زۀ هغه جرے دَ مینے خابیرۍ ووم محبوبه ووم

زۀ هم دَ ارمانونو په تیرو کښے یو سپوږمۍ ووم
زۀ هم چرے په زاراوپه قربان نشه نشه ووم
زۀ هم چرے دَ سرو شونډو مُسکا کښے کم یم به
زۀ هم چرے غنچه کښے یوه ښه شان وږمه ووم
زۀ هم چرے یو شمع دَ مستۍ دَ محفل ووم
زۀ هم چرے دَ سرو مستو سترګو یو پیاله ووم

خو

هیڅ پوهے نه یمه زه چه دلته څه راوځغلم دَ [illegible]
راوستے یمه کوم رهبر په کومه میوه لاره

○

چرته چه دَ چاوی قومیت غلام
هلته خامخا وی محبت غلام
مینه اے غریب زړګیه! مه کوه
دلته کښے دے حسن دَ دولت غلام
زۀ ننګ دَ پښتو لرم همّت لرم
نۀ شم زۀ کیدلے دَ قسمت غلام
خو چه وی موجوده نظام دَ زور اوُ زر
دے کښے به وی تل انسانیت غلام۔
ځکه دے یقین په آزادۍ زما
نۀ یم پیدا کړے زۀ قدرت غلام
دے آواز نه کوم زنځیر دَ تیکے دے
نۀ یم زۀ غلام نۀ مے ملّت غلام

○

که موارمان په غېتو غېتو وي ديدن د ښکلو

ليونو راشئ په بازار نيلام دے نن د ښکلو

ماد نجوم په سيپارو کښې دا دي اوس اولوستل

چه قحط د مينې راروان دے په وطن د ښکلو

پرون که يو يوسف اخستے دو د مصر عزيز

نن سوداګر په ډېرے نرخ کښې دے نکتن د ښکلو

زه درته ګورم مړادي مړ دي په بے وسو سترګو

د سرو ګولو ګلنئ وريږي په ګلشن د ښکلو

لاړے د دينو مرغلرے بے قيمته شو لے !

د رقيبانو باچائي ده په يمن د ښکلو

ساقي رواج د ميخانے په نوي رنګ قتلو ي

پيالے د زهرو نن وېشي په انجمن د ښکلو

سائل ډکوم شپېول ته خوږ د خوږ د خوبونو له وړي

نادان زړګيه! تصور دے ډېر ازغن د ښکلو

---

# زما قلمه پاسه

د چل او دُول د سرمایې خواستانو را نه | د پیړې پیړې او خوړې د پیړې زمانې او خوړې
نو د نقشو د ښکلونو او لو پروالی را نه | د زړې دړې د عظمتونو استانې او خوړې
د زر پرستو هوسناکو سوداګرو را نه | زما د خلې روزي زما د ژوند دا او خوړې
خود غرضو د بیو کو تپلونه لیوالو را نه | زمونږ د او کو د هډوکو خزانې او خوړې

زما قلمه پاسه بدل که دغه نظام !

دغه نظام چې یکې مینه محبت خرخیږي | دغه نظام چې یکې ننګ او غیرت خرخیږي
د نظام چې فولادي بند یځ ده د ژوند | د نظام چې یکې زړه نه په قیمت خرخیږي
د نظام چې یکې زړه د سر په تیږو زیورو وي | د ژوند احساس یکې خرخیږي شرافت خرخیږي
د نظام چې د ښو نو حسن تر یب دے | چې نو بازار د بیر ملا یکې عصمت خرخیږي

زما قلمه پاسه بدل که دغه نظام

زما د مستو ارادو د تکلونو قاتل | زما د ژوند د خوانو خوانو تعبیرونو قاتل
چې معصومې ولولې په هر قدم کې د ژړ ني | زما د مینې او د ژوند د فکرونو قاتل
چې را نه زبه د دردونو د فریاد پرېکوي | زما د خوږ زړه د احساس سوبړونو قاتل
چې خندا نه واخلي د ژړا نه زخم کوي نه شم | زما د ژوند د دوزخ زما د همتونو قاتل

زما قلمه پاسه بدل که دغه نظام

چې د تمام انسان د وینې او وجدان وی پیکې | د سرمایې د خولې نمې غمبیر وی پیکې
چې د تمام انسان ګړې پیکې تردیږي او مري | چې د نو خوسړې خوړې په ملا وي پیکې
چې د زیونو ګدانې دانه نه بې مري | د نو خوږه زړه منئ نه وی خودل وی پیکې
چې د ځطمې مرض نو ګوړ کړ د غوری ئے | د ساز نغمو د تو نکو د یا نشه ترسید وی پکې

زما قلمه پاسه بدل که دغه نظام

زما قلمه د مجبورانسانیت په خاطر
د مرض علاج ته د مجبورانو پاسوه

پاڅو زړونو که د خپل عظیم طاقت نه خبر
ترینه د ستړو مایوسو دغه پیریان پاسوه

مزدور ته درګه لیوني سبق د خپلې هستۍ
مرض لري د جونګړې نه د نقص پاسوه

د خپل نوښتوی مستقبل زړه کو ودرباره
د خپلو نیو سوزونکي چراغان پاسوه

زما قلمه پاسه بدل که دغه نظام

که رابه شو د محنت د لیونیانو نښکرو
نه به دا زړه د غریب وي نه د چل دامونه

که یو خانې شو نیستي هلي بربخونه
کړې به تار تار رسا مرا جبانو د غریب لونه

که یو خل سترشوا زراد غ شو مجبور غونه
منزل ته به شو کښې د سلام به کوي ځمونه

پاسې بیدار شي د ضن محنت کوونکو پښې
یو صلاح ته کړي نوبل د زړونو دې غوبړونه

وا ورځې غو. د قلم چه دا نظام کړو بدل

زړه ته نن خو هم کړم چه زه تر یم کولې نه شم
نور د دا غونه د ښهر ستر ګو ونځلې نه شم

او سوځ مې بیا به کا زړه ولې ستا د چم ګیبان
راغئ یم د ر دروازې پورې درتلې نه شم

دلته هیڅوک د محبت په ژبه نه پوهیږي
بیت بیت لوګیږم د زړه حال چا ته ویلې نه شم

مینه د سپند دانه تهیږي د زړګي مینې
د تند مرخو نو خه ځې ترم ځپلي نه شم

چه خضر نشته رسوائي ګې به قسمت د مینې
ورمیند ډیوا ییهه ساتلې نه شم

ساقي به یم خو د ښتو یه تقاضو لې قسم
ګچکول مسین لرمه سوال نه نیولې نه شم

# رنګین منظر

شبنم نه وو سپوږمۍ د وړانګو د ګل په شونډو
ژوندون د ګل بخښله رنګه د ګل په شونډو

آدم د ژړ ګتل د زړګوټي هم تماشه او کړه
ماشوم احساس د مینې ورتېد د ګل په شونډو

ګلشن د یوسف یو پرېشانه معمه ده
عظمت د حسن زور ور د سوېد د ګل په شونډو

سکروټي سکه چما نیام کښې تور د جالمبه کړه
د ژوبل شفق سور رېبد د ګل په شونډو

تیمه کښې د ناداني ظلم څه دا سې بې وسئ دی
خزان خپله مظلوم وو شرمېد د ګل په شونډو

٭

زړه مې د ژړ ژوي بېنې مې مړ شي چې خم ستا په کوڅه
خو به مالتې شي چې خم ستا په کوخه

لا چې د شونډو شکر د وډوړه د ډیوا لېناه
احساس مې سم اړ ژګي چې خم ستا په کوخه

هډ یو ورځ چې ژړا په نوم یسې کولې
یاد مې ستا هغه خېژي چې خم ستا په کوخه

د غم مجبور ستار د ډیوټوب د مې منم
ژوند د مستي تېوي شي چې خم ستا په کوخه

د و مړه انځاره د مجبور ژوندګي کاڼي او کړه
سلام مې سوځنا اسو شي چې خم ستا په کوخه

خدای خبر نو م پر دستان د وسره بد ولې نګي
ټول رقیبان ملې شي چې خم ستا په کوخه

# یو آواز

مونږ یو ننګیالی لښکر تیار دے زمونږ
ننګ په وطن کار دے زمونږ
خو صرف یو آواز ته انتظار دے زمونږ

مونږ په دا سے خاورو کښې دُ ژوند خړ پوسے کړی دی
چرته چه دستور دے چه د ګور مړی هم ننګ کوی
مونږ د دا سے غرونو په لمنو کښې لوئے شوی یو
چرته چه سر هسک شی نو د غرونو سره جنګ کوی
مونږ د دا سے مینے په طوفان کښې سترګے سپړدے دی
چرته چه طوفان د چا د سرو سترګو نه څنګ کوی
مونږ د لامبوزن د دا سے مستو دریابونو یو
چرته چه سړے وینے مستے مستے شی غورزنګ کوی

هر نظر یو تهر دے ناتار دے زمونږ
ننګ په وطن کار دے زمونږ
خو صرف یو آواز ته انتظار دے زمونږ

نښتنه په تاریخ کښې زمونږ نښتنه د شکست نښے
نن هم په سرو دینو وینو شونډو ګواهی کوی
دا زما هستی ده چه ورکیږم لا زیږیږ مه
څوک را باندے د لے هسے خپله تباهی کوی
وا دِ دری منی دِ نه دا چغه به ښره یو ځل زما

اُود به پرې دنیا کېږي که خوک خنه هم گُستنې کوي
خوک هم که د اوږد وطن د مړه دا ایرو ډیران گڼي
سرې بې پوکې خوک یو پرې تی شو تباهي کوي
فکر لې زیږدې سوز انګار دې زمونږ
ننګ په وطن کار دې زمونږ
خو صرف یو آوازته انتظار دې زمونږ

منم زمانه به د مشین په طاقت نازکوي
مونږ د خپل مضبوط ایمان په لوئې دولت غرور کړو
منم زمانه به د ایټم په زور غلطه وي
مونږ د انساني فکر په لوئې دولت غرور کړو
منم زمانه به وي د چل په تجربو نشه
مونږ د خپل رسا فکر په هر جرأت غرور کړو
منم زمانې به خان په مبل شکل لیدلې وي
مونږ په خپل ساده اوزپه میین فطرت غرور کړو
ننګ د محبت په بنګې زار دې زمونږ
ننګ په وطن کار دې زمونږ
خو صرف یو آوازته انتظار دې زمونږ

---

○

سو چې مې کړې د تږې نظرتا د خپل نظر په جام
را ډکړه مستي د ژوند د راکړه د کوثر په جام

دینه مې تازه شوله تو ده شوله اُو مسته شوه
په ساقي! دا کوم شراب د راکړه د سحر په جام

ټول گلشن به اودرېږي خالقه د گلشن زما
گل ته د احساس مې که دا ورچې شونډې تر په جام

ستر گې مې نن بیا ځلې لگوي خیر خو دي ورته
دا دی دا غوته مې شوه د خونِ زړهٔ د پرهر په جام

مرگ ترینه په تیښته لاړ او دم آسمان ته اوختو
دوه لیونو او ښکل د ژوند زهر د باور په جام

اے ساقي! تنده د سره شوه که لا والوته
کوم آب حیات د پردن او ښل د دلبر په جام

# زما شکل

دُنیا دا ئي مخلص دے سر پیتوب لري قابل دے
خوزهٔ دایم چې هیڅ نه دے چې خان نه د سائل دے
منم چې ښهٔ نه ښهٔ صلاحیت به را پیکښې وي
خو یو سپیره غربت مې د دے هر صفت قاتل دے

شونډې ګندم په نوم د يار پابندۍ اولګېده
د پاکې مينې په اظهار پابندۍ اولګېده

پېژبو وه خو دا په قلم باندې قلم او شو
چه مو د سترګو په تکرار پابندۍ اولګېده

رواج د دار چه د منصور نسل پره اوزېږود
چه په دار او نه ختوه په دار پابندۍ اولګېده

د مينې دې دستور ته څه نوم ورکولې شي څوک
نعم په اقرار هم په انکار پابندۍ اولګېده

ګل چه تازه د خار په مرسته شو زما په وينو
د قلم حد ګوري په خار پابندۍ اولګېده

لږې دا ګرېږې د حنانان د تندۍ هم اولوله
زړګيه بس په انتظار پابندۍ اولګېده

اوس به د ګل سندرې جوړ اے ستنه ليکو
د بلبلو نو په چغار پابندۍ اولګېده

زنځیر کړی دانسان د نظم ملت په زنځیرونو

زنځیر کړی په بل شکل کښې خیالات په زنځیرونو

شعور په زنځیرونو کښې ساه هم واخستے نه شی

نظام به د شعور وی مساوات په زنځیرونو

تاریخ دے رضا شوے د یو جنګ په فیصله

قابو به شی ترڅو پورے حالات په زنځیرونو

ژوندے ردِ عمل دے د عمل په هر برا ډُ

کم نه شو کم به څنګ شی معادنات په زنځیرونو

احساس یوے لطیف شان ګناه ته پارولی

او دا به بیرته څنګ شی جذبات په زنځیرونو

ذهنونو نه پاسیږی بلا ګانے د وهمونو

اوس نه مری د ژوندون لوازمات په زنځیرونو

په ظلم کښې هم اوس څه لږ جدّت ته دے حاجت

ظالم هم یقین نه کوی اوس زیات په زنځیرونو

سانګه دده، نخیله خان د ښده پرانستے شی

ترلی به ترڅو وی نظریات په زنځیرو۔

○

چا و خندل خدایه چه مې خوږ زړه پرې ټکور شو
وریت احساس مې ګل په خندا پاڼې پاڼې خور شو

ستا د خوانو سترګو د خندا په سور سپرلي کې هم
زړوند راته انګار شو زلمیتوب برابورې اور شو

زړه مې درې ستالاسو کې نظر پرېسانه پام کوه
او به مرم جانانه که د اجام درنه نسکور شو

منمه شوه رڼا د رخ چه په رقیب هم تور شپه شوله
منمه شوه چه راپورې ستا د پاکې مینې تور شو

چا مېشلي په سوکه د کوم غره پېغور ږېد و کړله
دا چه زلزله شوه دا د چا زنځیر شور شو

ستا د پښتنو سترګو دا لوټې منګلې پښتون وطن
په جانانه نشې پکښې کور شو او نه ګور شو

جنګ شو تل مې جنګ شو د ظالمې زمانې سره
زه شومه تل زه شومه تل ظلم شو تل زور شو

دا زما پښتون عشق چه سبب د انقلاب نه شو
خپل احساس مې وژني خپل قلم راته پېغور شو

د محبت په تورکافر شومه په دار ولاړ یم
د هغه بل قاتل جانان په انتظار ولاړ یم
خوږې د سترګو مې شه زخمي لا لیږه !
د سترګو غشي به دِ کوم سینه ار ولاړ یم
خدایه پوهیږې که ، په شم خو ترتیب خوک اوکړم
په تنده سپرلي کښې ګل ته نه رسم په خار ولاړ یم
نن راته یار وراته وراته په دے ګناه اوکتل
چه د دَرتو دَرتو فکرونو په انکار ولاړ یم
څوک مصور نشته چه اوس زما تصویر جوړ کړي
دا دے مغرور تصویر ته ګورم د دلدار ولاړ یم
خان ئے د دینو په مخ بدرم رابکښې وینه نشته
ګورم د ژوند نا جانړے ناوګته سنګار ولاړ یم
په کومه لار چه دِ دوم پرینښے د راتلو په طمع
زه خو هم هغسے اشنا په هغه لار ولاړ یم
ته د وختونو د خوبونو په نشو اوده ئے
زه نا قلاره زړه په طمع په قلار ولاړ یم
نن چه بیا راوړه زړه د غونسا د جفا په تماشا ئے د هغه لالا زار ولاړ یم

# رسوائی

پټ پټ مې ډېر د زمانې نه په ژړا اوژړل
ستا هغه پټ پټ ناروا ظلمونه ما اوزغمل

ما زړه ته ډېرې دلاسې ستا د وفا ورکړې
تا مې خپېرې دلاسو ته د جفا ورکړې

ما خپل روح کښې تا له پټه جوړه کړله دُنیا
ما جوړه کړله دنیا تا به وړانوله دنیا

ما پښتو درکړه ژوندمې درکړو چې مهالې نشوې
تا زهر راکړه په خندا کښې چې مېزبانې شوې

ما د خپل فکر غطر او شیندل ستا په خاطر
تا په خوږه خوږه اوربوړ کړو ژړا په خاطر

تا د اقرار د خطایو ډېر منډه اوکړه — ما د دستې ځدایو ډېره منډه اوکړه
تا د مانکل د آشنایو ډېر منډه اوکړه — ما هم والله د رسوائی ډېر منډه اوکړه

خوږ

ن د حالاتو د ځپېړې د لاندې سااخلم — هر څه کیږي ئي تامه خداغا احلم

---

## موسم

د سرو ګلونو د خاموشخندیدو موسم دے
د نوے مینې په ورشو د پسرلو موسم دے
راد ره! ستا د نظرو د ورېدو موسم دے
د غې باران ته د نظر د غورېدو موسم دے

# لیونۍ

دیو صحرا د لار په خوا کښې یوه ځانله بانډه
د چم ګاونډه د کلی کور ښار او بازاره لرې
لکه په لوټې دښت کښې د چامښین جونګړه ښکاری
د هنګامو نه او تلغاو او د یلغاره لرې

په خپل منزل باندې تنها په دم دم خم روان یم
د فکر اس د باندې مخ ته زغلوم روان یم
دلته به څوک وی په ورو ورو نزدې کیدم روان یم
خپل احساسات په خوب اوده راپاسوم روان یم

هلته چه ورا غلم حیران شوم د دیوال سوری ته
پښې لاس ترلې یو حسینه شان ځینې ښکاریده
یو څو اوږې ځلې ماشومان ترلې لرې ناست وو
هغې د ځان سره څه وې څه لیونۍ ښکاریده

زه چه ورته اولیدم نو بس یوه تپه مې اوکړه
د خپل دهقان ځاوند د غږه د تلو تیصه مې وکړه
خپلو بچو ته په ژړا شوه اشاره مې اوکړه
ویل مې په زوره او بس شرشو غصه مې اوکړه

زهٔ حق حیران شوم اؤ ورته مے پوښتنه اوکړه
چې دا موخه ده؟ اؤ هغوئ شو په ژړا ویل ئې:
جې! دا مو مور ده لیونئ ده دا مو پلار رټلے
هغهٔ د دهقان دے غوږ نه تلے په بیابیا ویل ئې

ددے اَ پلټے اؤ بچونے ستړے ستړے ژړا
ددے ښائست اؤ په زنځیر تړلے شوی ځوانی
ددوئ ژوندون سلګئ سلګئ اؤ ژړا کانے خوراک
ددے اودربل تالا والا اؤ سوے لوے ځوانی

اُوف! غم د خپلې چې دهقان ئې هم، مزدور ئې هم کړي
د ژوند ملګرے لیونئ شي کور تالا والا شي
چې د غربت د تیسه ورور عزیز اؤ یار ورک شي
سترې وازے ځلے بچي راغونډ په مور، تالا والا شي

علاج ئې څهٔ دے بے له دے نو ځائے د چارګنه نور
چې یا باغي شي یا تپه د لیونتوب پوره کړي
یا به شیلي دا سرافیل دا معمه حل کوي
چې مړهٔ له مرګ، ژوندي له دے مرګونی خوب پوځ کړي

ګنی که دا قتل وقتال تل د ذهنونو کیږي
معاشره وی خونړئ اؤ هم قاتله دا سے
دا لیونتوب به یو د سرو وینو طوفان راولي
غرق به مانړې کښتئ سره شي د ساحله دا سے

---

# غزل

په نیمه شپه را یاد ے شوے خندانے سترګے ستا
په سرو سترګو مے ښکل کړے ظالمانے سترګے ستا
وژړه ونیمے خښبو نه ورته ډیګر کړے ارزانے
په ما باندے دی څومره یاره! ګرانے سترګے ستا
دا هر وخت چه زما دزړه وژلو ته ګواښیږی
په دے خوے دی خوښے قاتلانے سترګے ستا
رښتیا وایه په مینه کے قاتلے شوے که نه؟
بدنامے زمانے نه بدګمانے سترګے ستا
چړے چړے خبرے په رنګینو اشارو کښے
کوی را ته هر وخت قصابانے سترګے ستا

---

# جانان

ملالے سترګے د سرو د ښو خمار وړوی
په پوهوی احساس بادو نه دبهار وړوی
ستا دخاموشو شونډو هیڅ معنیٰ کولے نه شم
بس دغزل په کوبند وطن افکار وړوی
وَیم دچمن دګل نظر ته کرم نظر سپیلنے
خاندی چه وخت پړ بارانو نه دانګار وړوی

# آشنائی

انغزی دانه په سترګو کښې ماتیږی خو بیا هم
د ګل د خوږې مینې د غرور سره آشنا یم
بلې مې ستا د حُسن که معراج وی دا ارمان
بیا زه خو دَ ازل نه ستا د نور سره آشنا یم

---

# بتکی

تا د پښتنو د خوږو زړونو درزا د اخسته
جوړې دِ ټنګاره ترې خوږې خوږې نغمې کړې
ما دِ دَرسا ذکر نه ډیره رڼا دا اخسته
ډیوې مې ترې بلې په زړونو کښې ډیوې کړې

---

# ګلِ لاله

سور ګلِ لاله یم د زړه داغ ته په خندا یم
رنګ په وینو پروت لکه شهید د کربلا یمه
ولې دِ دَ خپل نظر دَ پاک جنت نه اوویستم
نه خو زه آدم یم نه غنم خوړم بې ګناه یمه

○

دا خیر دے کہ خوک ماغوندے بد نام پہ کانړو ادلی
خو دا عجیبہ خلق هر نیک نام پہ کانړو ادلی
دستا پہ مست نظر کښے دا دچا دے پرے پوهیږم
پوهیږم چہ دَ پا کے مینے قام پہ کانړو ادلی
مرګ خۀ دی! دلے کاش چہ پدے مرۀ معاشره کښے
د دهم لیونی دَ زړوند پیغام پہ کانړو ادلی
پہ کوم لوری مے بیائي؟ اے زما مجنونہ عشقہ!
چہ داد کلی خلق مے هر ګام پہ کانړو ادلی
مبالغت کہ خۀ مقام لري خو دا! عجاز عشق دے
دا دلے شکلی خلق خپل مقام پہ کانړو ادلی
زموږ د مینہ مستولیو نو لارے چہ نیسي
نا کامہ رقیبان دی خپل انجام پہ کانړو ادلی
(یکم مارچ ۱۹۷۳ء بحرین سوات)

## شپږم ستمبر ۱۹۷۲ء

چہ خپلا د ینئي شیند لی د دے خاورے پہ نوم
دهغہ سرے جذبے دَ د ینو احترام کومہ
خو چہ دَ زړۀ وطن مے نن هم دوه ټکړے دے
نکہ شہید نہ مے پہ ماتہ خُلہ سلام کومہ

# بیا زما ټوپک په ما پسے راواخله

دا خو شعر ئے ما د مردان یوتھ کلب په یوه مشاعره کښے په ۲۷ ل ۳ ۱۹۷۳ء
د مئی په دوئم د صفحے په درخ وه ووئیل.

دا چه شور دے څه چل دے یا څه چل کیږی
متحه جوړ د زړه چاؤدی ژوند حل کیږی

خاموشی ده د احساس بلبل سته وانی
دا ارمان څانګه کښے سره غوټئی ګل کیږی

اے غوږ یارانو ! زیرے دے دربانده دے
تاسو نور لس لوړ لس نه وایئ شل کیږی

تودے وینے مو خیرات کړئ کنه داذ رئ
د قارون په کور کښے وینی دا زل کیږی

دشه غوټیو کښے پیغام د ژوندانه دے
دا په دم اؤ په قدم چه قتل کیږی

عقیده ده چه پر دے اتل فیصله ده
د جانان دیدن د سر په بدل کیږی

د پنجرے طوطیانو ستاسو چغار اوری
خو کیدو د ژوندانو نو پاګل کیږی

په وطن لوبه د عمل باچه شروع ده
غل باچا شی اؤ باچا کښے غل کیږی

صبا بیا اُشر د سرے پروپیګنډه دے
دآدم مجبور خامن به غوبل کیږی
بیا زما تهوپک په ما پسے را وا خله
دد ے سرو وینو حساب به پوځل کیږی
خه پوهیږے د احساس اُو ده وَس جنګ
دَ وطن ملوکے ستاپه اودربل کیږی
په اعجاز د امریکے دِ برکت وی
په قلم چه ئے ترل پرانستل کیږی
هسے نوم پرے دَآسمان چاپدنام کړ ے
نو زما کور کښے کرل اُو ریبا کیږی

# پاکه ګناه

خپلے مجبورئ شمیرلے فن دَ زهٔ فن کار یمه
زهٔ دَ ژوند دَ غم اُو دَ سپځاګ سرمایه داریمه
دلته کښے رواج دَے تورته سپین اُو سپین ته تورویل
زهٔ ورته آئین نیسم په دے ګنهګار یمه

## ډرونډ تپه

دَ ډرونډ تپه دَه که سپيلیٔ دا سرائیلٔ خونهٔ دَه
چه مرهٔ ډرونډی شو ډرونډ وسره خبرے کوی
دَ خپل اولس د آزادئ د محبوبے په خاطر
ننګيال زلمی دَ زولنو سره خبرے کوی

## بے رحمه زړهٔ

تا ؤ دِ نظر ته دومره مهٔ ودروکه
پام هسے نه چه دِ بانړهٔ اوسوزی
ستا په بے رحمه زړهٔ چه ځائے نهٔ شه
زما پخپله په ځان زړهٔ اوسوزی

## يه خلقو

چه ظلم ورکے کړے وظالم ورکے کړو | داد دا ره يئو دی که جدا جدا دی
مونږ ظلم ظلم پسے چغے وهو | خو ظالمان موټول خامن دَ نيا دی

# دشګاګو وینه

## یو پیغام

د نظم د سخاکوټ د مزدورانو په یوه جلسه کښې واورولے شو. دا جلسه د شګاګو د مزدورانو د یادونې د پاره کیده.

(یوم مئی ۱۹۷۵ء)

مزدوره! تا ته د شګاګو شهیدان مزدوران
په ګرمو وینو کښې لړلے یو پیغام درکوی
دا چې شونډې و ترسکیدې ونکو آخری سلګونه
تا ته ستا لاس کښې د ژوندون د ادبو جام درکوی
په سرو سرو وینو کښې د ډډ بو ښا روسنګونه
د قتل شوو تنکو سرو ګلو انجام درکوی
د خپل پریکړی قربان شوی سرمنتنے نه درته
د ژوند مستی درکښې سبق د ننګ و نام درکوی
د دے ظالم سپیره بدبخت قاتل نظام په بدل
د سرتیوب نه ډک د مینے پاک نظام درکوی
د خپل تریخ ژوند د خوږ خوږ خوبونه درته
د دے دنیا واره خوا بزه په احترام درکوی
خوا ے مزدوره! دا پیغام په احترام واخله
په خپلو لاسو کښې د خپلو وینو جام واخله

په بلیدو ننګو لمبو پښې کېږده اوګام واخله
د هر ظالم د هر سامراج نه انتقام واخله
انقلاب راوله په خپل لاس کښې نظام واخله

خوارې مزدورې! دغه لار د فریادونو نه ده
د ژړاګانو او سلګو نه ده د ویرونو نه ده
په دغه لار کښې سنګینونه شته بیټونه شته دے
په دغه لار کښې زنځیرونه شته دارونه شته دے
په دغه لار کښې سرې لمبې شته دے او اورونه شته دے
په دغه لاره کښې بمونه شته ګیسونه شته دے
دغه منزل ته به په سرو لمبو کښې تلل غواړي
که چرته دام مخکښې راځي نو به شلول غواړي
که چرته دار پېښې شو به سر بې کډیل غواړي
که زنځیرو هغه به ټوټې ټوټې ماتول غواړي

---

## زخمي احساس

یاران خو د هر لوري نه سندرې د غم وائي
قسم دے که هیڅ پوهه شوم چه چا ته آدم وائي
احساس د یو انسان چه شي زخمي اے زمانې!
بیا دا ولې شي کفر چه ستم ته ستم وائي

---

# مینه او ګیله

ما قام ته لاس ګړو ما دے نیکم خوخهٔ ؛ وسیکم
خهٔ د حق تراخهٔ که د درو غو خوازهٔ ا وسیکم
ډیر د رقابت خوازهٔ خوازهٔ دو خو ما پریښودل
ډیر د حق ګوییٔ تراخهٔ تراخهٔ دو خو ملا اخستل

ما اولیکل پښتونه ستا په حالت اولیکل
ما دِ په دے ډیر توهین آمیز مذلت اولیکل
ما چه ته یتیم یسیرے ژبے ګونګے اولیدے
ما دِ په هستیٔ او په رعب ا رجښیت اولیکل
ما چه ته په بل پسے په زارا او قربان اولیدے
ما دِ د تاریخ په هغه شان و شوکت اولیکل
ما چه ته د خپل قاتل په خواکښے مسکے اولیدے
ما دِ په سرو و نیو په کم ظرفه عادت اولیکل
ما چه ستا لاسونه ستا د ورور ګریوان ته اولیدل
ما دِ په قد رونو دَ ننګ بت او مروت اولیکل
ما چه د غلام د پښو لاندے سرتورا اولیدے
ما دِ د شملے په غرور خیزه عظمت اولیکل
ما چه تا ر په تار او در په در خوار و زار اولیدے
ما دِ اے پښتونه په عظیم قومیت اولیکل

ماچه د دغل شپېلۍ نه لاس غورزېدل او لیدل
ما د په پښتون ننده ی داغ شوی غیرت او لیکل
خو تا ئے قلم مات کړو تا ئے سر په کانړو اوده وېشتو
زهٔ دُم ستا نظر تا خپل نظر په کانړ داده وېشتو

## غزل

نن د مینې په وطن کښې د دیدن ګرانه ګرانی ده
خهٔ د اوښکو قیمت نشته خهٔ د دینو ارزانی ده
کومه پرخه ده چه ژاړی هغه کوم ګل دے چه خاندی
په ژړا هم پابندی ده په خندا هم پابندی ده
د کښونو سندرغاړو سپرلی خیالو شاعرانو
راشئ ګیره په لمبو کښې د سپرلی مستهٔ خوانی ده
چرته لاړی رائے د زلفو په تالونو زنګېدونکو!
نن په زلفو د صنم کښې د بارود و خوشبوئی ده
د احساس د ګُل په شونډو د داورسوے سرو څپو بندے
د غم لوبه د هوس ده، بهانه ئے مجبوری ده
چه د خان د غمه ژاړم د ظالم د غمه خاندم
ښهٔ خودی چه ئے ځا یے ستمګر سره یاری ده
چه په خوږ زړهٔ ئے امبار دے درد و غم د غم زړېلو
ما غریب مئ ګڼړئ خلقه! دا ئے لوئیه باچائی ده
هلته هوېنې ښنبل حلال دی دلته اوښکے ښنبل حرام دی
هلته هغه زندګی ده، دلته د غمه زندګی ده

## زنځیرونه

زلفې چې په مخ دې پریشانه زنځیرونه شول — ما د چا نه وې د ګلستانه زنځیرونه شول

ستا ګوښه کښې ستا د محبت په ګناه او کوز — ستا نوم اخستل را ته اجانه زنځیرونه شول

واده رنګ مینانو اد نن نو خبرې دا سې دې

اوس مینه د هجر د سزا نه زنځیرونه شول

---

## امن

د چل یو زړ ماضي کتاب د ویرانۍ لټوم — پکښې شنګي خالونه شو ندې ګلالۍ لټوم

د دوه دورانه د وطن د یا د بنګو تبګي کلي کښې — که ترخم شنا یم په چل غزل د رنګینۍ لټوم

د بم د دین نظام د ظلم نه پناه اخلم — د حال د سورتنو په سر لمبو کښې خانې لټوم

د بلا چا ئې خمار خوړلے یم جنون واخستم

د ژوند په نوم د خونړۍ امن جولۍ لټوم

---

# زیړے

دا نظم د ویټ نام د آزادئ په موقع عین په هغه شپه ولیکلے شو په کومه شپه چه د نړئ د ټولو راډیو سټیشنونو نه د ویټنام د آزادئ اعلانونه نشر شول۔

لمبو اؤ د بارودو او ګولو په دندو کار کښے
د ظلم د سوربټ په ترقهار او پرقهار کښے
باران کښے د سیکے اؤ د بمونو په ناتار کښے
د توپو جهازونو درزهار او غوزهار کښے
خو ! ویټنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

د ګرمو ګرمو سرو وینو تودو تودو لوخړو کښے
د خوږمند و او میاندو خوږ زړونو په قطرو کښے
د خپلو وینو ښنو د تریخ ژوندون په کټورو کښے
د اوږو اؤ د ترږو ماشومانو په سلګو کښے
ویټنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

آباد آباد ښارونه کنډرونه شو ویجاړ شو
که مینے حوانه کلی شو بټکی بټکی لتاړ شو
کورونه شو حارو د انسانانو نه اوشاړ شو
په ډیر اوږد لوے جنګ کښے انسانان وو چه کاړ شو
خو ! ویټنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

هر خوا په هر طرف نمائشونه د لاشونو
په هر قدم کښې غرونه د لاشونو
د تنګ په هره لار کښې امبارونه د لاشونو
جوړ شوي وو په هر میدان ښارونه د لاشونو
د ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښې کامیاب شو

هر ویر کښې به سندره د ویتنام د آزادۍ وه
خبره د هر چا په خُله د قام د آزادۍ وه
تیندک ډزې او که منډې په هر ګام د آزادۍ وه
چې خله وه خوزیدله په پیغام د آزادۍ وه
د ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښې کامیاب شو

د ژوندون د ویر ژړې ورځې وې غمونه وو او جنګ وو
مظلومه انسانیت وو او ظلمونه وو او جنګ وو
ښځې ابله پیغلې! سرتور سرونه وو او جنګ وو
ورځ نه وه میاشتې نه وې بس کلونه وو او جنګ وو
د ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښې کامیاب شو

زلمیان وو او که پیغلې وې په یو میدان ولاړ وو
بوډۍ که بوډاګان که ماشومان وو جنګیالان وو
په دینو کښې پیدا دینو کښې لوی دینو کښې مړه شو
ژوندون ورته سلام وکړو نړوان د دتمول نړا شو
د ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښې کامیاب شو

سامراج یوازے دانه چه ویتنام ته سلام اوکړه
سامراج د دے نړئ هر مظلوم قام ته سلام اوکړه
سامراج د مظلومانو احترام ته سلام اوکړه
سامراج ټکه غلام د قام غلام ته سلام اوکړه
ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

ملګرو د سامراج د حکمتونو زنځیر د سنه
ملګرو د سامراج د فریبونو زنځیرونه
چه ډه ئے د نړئ د مظلومانو نه تاؤکړی
ما تیږی هر طرف ته د دهمونو زنځیرونه
ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

په ټولو قام پرستو انسانانو باندے زیر دے
د حق په جنګید ونکو باتورانو باندے زیر دے
د مینے په ملګرو او یارانو باندے زیر دے
د دے نړئ په ټولو مظلومانو باندے زیر دے
ویتنام د خپل تقدیر په جوړولو کښے کامیاب شو

---

# تپوس

زۀ هم يو انسان په دې وطن کښې زېږېدلے يم
دلته د ژوندون د تېرولو حق لرم که نه؟
زۀ چه حيوان نه اويو انسان خدائے پيدا کړے يم
دلته کښې د خولې د پرانستلو حق لرم که نه؟
زۀ چه د پښتون په نوم دا د دمرۀ قامولي لرم
نو بيا د پښتنو د يوُ کولو حق لرم که نه؟
زۀ دِ سترګے ړوند کړم او نۀ دِ اوُدرم چپ دِ يم
څۀ هم به د سترګو غړولو حق لرم که نه؟
غير خو دِ زما په ذلت خاندی بنۀ دِ او خاندی
خو زۀ پرِ د خوا د ښکو څڅولو حق لرم که نه؟
ما ته خدائے پښتون قلم پښتو ژبه راکړے ده
زۀ پرِ دا اولس د رابللو حق لرم که نه؟
څۀ اوکړم شاعر يم د احساس تنو رکښې سوزمه
لاس کښې مے قلم دے د ليکلو حق لرم که نه؟
مے د حق غوښتو منکو حق پرستو يوُ تپوس کوم
مے د لوئے اِنسان په مينه مستو يوُ تپوس کوم

---

# شپیلۍ

که ژوند دی ژوند زما دی
که فن دی فن زما دی
خپله شپیلۍ غږوم
خپل پرهر و نه چیړم

ژوند به نغمه نغمه کړم   کائنات ټول نشه کړم
د زلمیتوب څه خوا ږه   دلیو نتوب څه ترانه
ازغن ازغن تصوّر   نولجن نولجن تصوّر
دمات زړګی خبرے   خوږے ترخ سندرے
نن پکښے بیا آرزو م   خان ته دُنیا جوړوم
خپله شپیلۍ غږوم
خپل پرهر و نه چیړم

په تکه توره شپه کښے   په یوه اوده صحرا کښے
په اژدها ځنګل کښے   د ښکلا درد خوا کښے
پیریان دیوان دِ هم دی   خوبنیادم دِ نه دی
فرشتګان دِ هم دی   خوبنیادم دِ نه دی
دا تربوران دِ نه دی   دا دښمنان دِ نه دی
زو ئ مے شپیلۍ بندوی   دا مدام زیان دِ نه دی
زه چه شپیلۍ غږوم   نغمے د مینے چیړم
په ژوند کښے ژوند لټوم   د مرګ نه ژوند جوړوم

دوئ د شپیلئ بندي
زمانه ژړوند آخلي!
نشه کې خمار آچوي!
زمانه فن آخلي!

اخر گناه د څه ده     دچانه څه غوارمه
چه پر دشمن شم دچا     دا سي څه نه غوارمه
چه مي په کلنړ دا دلي     مړه نه ژوندي مي ادلي
اخو خپل وردرې ادلي     اوپه خپل کورې ادلي
زړه د ې اخر اوژاړي     او څه وېل اوغواړي
چه شپیلئ سره نغمه شي     دوئ دا ته تیغ ولاړي
ژړې شپیلئ اونیسي     اخر ظلمونه څه دي

زه به ځنګل ته نه ځم
انسانیت دا سي دي
اې دآدم ځامنو!
دا اخوت دا سي دي

اخو انسان یمه زه     غلامي څنګه اوکړم
دالله که چل ئې راځي     عزت به دننګه اوکړم
که نمرودي لښې وي     که فرعوني خدائي وي
که دزندان قبر وي     اوکه د دار سورنی وي
خو پښتو نه نوریږي     اخو پښتون یمه زه
ماله اجل نشته دې     ژوند ون ژوندنی یمه زه
دغه وعده ده زما     په دې پښتو مې قسم
دژوند په سرو سرو سترګو     او په سترګو مې قسم

په دې خپل فن مې قسم　　په دې نغمو مې قسم

که نمرودي ليې دی

که فرعوني خدائي دی

که د زندان قبر دی

او که د دار سورلي دی

دد بزمانو تيښته　　د ميدانونو تيښته

به نوره نه کومه　　دا فيصله کومه

زه به شپېلۍ غږوم　　د ژوند نغمې به جوړوم

زخمي احساس خوږوم　　د غم ښپېتو به کوم

که ژوند دی ژوند دې زما

که فن وي فن دې زما

زما به وي که شپېلۍ

د حيا پابنده نه ده

---

# هوَس

منم منم زما هوسه! یه زما قاتله:
چې په ډېرې بې رحمۍ! ډېرې دردمې تتلوې
منم منم چې د ژوندون په دې خونړه پیاله کې
د ترخو زهرو هغه ترېخ مرګونې ګوټ راکوې
منم منم چې د شعور دا خلا نده سحر مې
د حادثو د طوفانونو څپې په تېرو دېتموې
منم منم چې د ضمیر د الامبوزن مانړه مې
د بې خودۍ د لېونو څپو په زغل غرقوې
خو ولې دا راوکه هوسه! یه زما قاتله!
ته چې هر څه کوې که مرګ راکې که ژوند راکوې
خو لږ را څه چې لږ نظر زما جهان! وګوره
زما د ژوند په ویجاړ دښت زما ارمان! وګوره
زما هوسه! یه زما قاتله:

دا مې جهان دې وران ویجاړ! زنتار شوی جهان
انسانیت که ورته! وګورې بې ګنګي ترینه
دا مې ژوندون دې سرپټوب له ترینه کړکه ورځې
ورکې نه شي د انسان ستوګې شرمېږي ترینه
دا چې ځوانۍ دې لوګیدلی! اسویلی باد وي
که، ادرې واخست جهانونه لمبه کېږي ترینه

دا ارمانونه چه لوغیږي د احساس په تنور
سوی سره ډیر ارمانونه راټوکیږي ترینه
نو یه هوسه یه زما د زلمیتوب قاتله
زاره چاؤدون دی تصور لیونی کیږي ترینه
راځه راځه لا دلته ډیری مقبری پرتی دي
د وخت د ظلم په طوفان خونی خوری پرتی دي
زما هوسه! یه زما قاتله

ته به بی شکه د هوس خبری کوی
ته به د وخت په تندي لوړي د معراج قصيدي
ته به په پل د خیالشی د کهکشان روان یي
تا به زده کړي دي د عصر د سماج قصيدي
تا به لوني کړي دي فکرونه په اوکو د ګلو
ستا په شعور به غزوني کړي د تاج قصيدي
ستا به د نفس په په شرابو غونه شوي وي خو
تا اوریدلي ځنه د تندي د بیاج قصيدي
نو یه سنګدله هوسه یه زما قاتله هوسه!
زما ننګ وژني ستا د رواج دَ دَرواج قصيدي
راځه چه ستر ګو ته دِ بُته لبر نظر درکړم
ته به تیرو وګنی راځه چه زه سحر درکړم
زما هوسه! یه زما قاتله

منم چه ته به د رنګونو په بازار ستړی اوزې
ته به د خزارو د جونګړو ویرانی نه وینې
منم چه ته به نوم د استرکاښتي ښتښل آوری

تهٔ د نهرو ساړهٔ شوی انغری نهٔ وې

منم چه تهٔ به څوغتهان په عشرتونو وې

خو د کړو دړدونو ادبد ترو بې وسی نهٔ وې

منم چه تهٔ به کارخانې اوُ سرمائې زوته وې

خو ښ نسته ژلو شلید لی کریوانګی نهٔ وې

منم چه تاته به وی زده د ارتقا سندرې

خو دا جهان کښې رکښې رنګی بتکی نهٔ وې

زما هوسه! په زما د روښې احساس قاتله:

آزادی دې په زړ لو پابندی نهٔ وې

ماد څوکسو په مړو شخوندونو مهٔ تیرباسه

ماد دې کلی په کچه رنګونو مهٔ تیرباسه

زما هوسه! په زما قاتله!

تهٔ که زما سر د دې زدر او زر نظام ته ټیټ

نوزهٔ پښتون یمه کوړې شم غندنه کوم

تهٔ که په ما واخې بستم ته د کرم سندرې

زهٔ به مداح یم که شاعر لیږه پوښتنه کوم

تهٔ که په ما باندې فریب نه هم اسلام وائې

زهٔ حق پرست یم اُخو ویره به د څنه نه کوم

تهٔ که زما قلم په زرو خړ څول غواړې

زهٔ دا سې نهٔ یمه چه سود به د خپل فنه کوم

زهٔ خپل تالا والا تس نس چمن ته نهٔ شم کتې

زهٔ به په سرو وینو د خپل وطن پالنه کوم

زما هوسه! په زما د نر قلم قاتله!
زه به دَ دار په سر کښې هم د حق غوبنتنه کوم
ته د شاعرانو د قلم سترګې په پيسو اخلې
ته دَ منصورانو د دار مينه په دوکو اخلې
زما هوسه! په زما قاتله!

---

# دقلم دور

چې ژوندون د زهر ګوټ دے دا کرم دے که ستم دے
دا انسان د احساس قتل په هر دم په هر قدم دے

د ژوندون تقاضې څه دي مرګ له څه زړه ورکول دي
په سرو ونيو کښې لامبل دي ځکه چې دور د قلم دے

---

# زما لوګرے پیغلے!

زما د ښکلی خوږ غریب وطن لوګرے پیغلے
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکے حُورے!

ما د سر تور تهذیب د پیغلو کلے هم اولید د
ما ته چه اوس هم راپه یاد شی نو حیا راشی
ما د سماج د دے جدید د ستور تیمے اوړید ے
ما ته چه اوس هم راپه یاد شی نو خندا راشی
هلته کښے درک د دے د بوډ خور د یوے مور تصور
ما ته چه اوس هم راپه یاد شی نو ژړا راشی
هلته د دے معاشرے پابنده خور بازار کښے
چه شی راپاد ، په شعور ے لیونتیا راشی
زما د ښکلی خوږ غریب وطن لوګرے پیغلے
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکے حورے

هلته کښے حُسن د پودر د او د سرخو په قیمت
دلته کښے حُسن د حیا او د پښتو په قیمت
هلته کښے حُسن د عشرت او د بازار نندارت
دلته کښے حُسن د پردو او د پردے په قیمت
هلته کښے حُسن د ا ... ن په شرف داغ لګول
دلته کښے حُسن د تهذیب د ضابطو په قیمت

هلته کښې حُسن د نیلام نه هم سیوا سدنام
دلته کښې حُسن دَ د ستور د پښتنو په قیمت
زما د بنګلې خورې غریب وطن لوګو ته پیغلې
زما د عصر د تهذیب د جنت پا کې حورې

ته ځ ے دا یاده شوې چه هلته ے دا حال اولید و
زړګے ے او شوکید و خورې شوا اُ د درد و نه شو لبس
ما د ے په کوم ورو دل دا ستا مرانه او ستا یمه
پښفورې زړګی دا پښو د تي دلځ غمونه شو لبس
زما د خورې تهذیب پابند ے غیرتي پیغلے!
ستا لوړ عظمت ته دا ستا نه زما فکرونه شو لبس
زما د پت اوُ د پښتو اوُ د شملے پا لو نکے!
ستا د حیا نه دا چاپیرزما غمونه شو لبس
ما وے ستا شان ته ستا حیا نه به خواج پیش کوم
خراج د مینې دا خوګ ما ت وګوره شعرونه شو لبس
زما د بنګلې خورې غریب وطن لوګرے پیغلے!
زما د عصر د تهذیب د جنت پا کې حورے!

ته لو پته لتې کړے متې لګه نر او نغا ړے
پټې ته لاړه نۀ لور دا خلے اوُ لړ و نه کوے
د پیغلتوب د ناز د لي سور مسپرلي په موسم
په کا نړو ګتهو تنګۍ پښې ړد ے اوُ کاروند کوے
دانښې د طفلانه خبه په نازک عمو کښې د زړونه دغم په لاره زغلے مرو ونه کوے

ستا د ګلاب تندی خوله ته نمر زیرېږی
خدای دې بې لوټه رونړ تندی ښه مختونه کوې
ستا دا همت دا حوصله یوه پېغلې پښتو
بس هرکردار یو ساده پښتنه جوړه کوې
زما د ښکلی خوږ غریب وطن لوګرې پېغلې!
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکې حورې!

خدای د وطن سوده ساده جاموکې ښکلې ښکارې
هیڅ د تهذیب د انقلاب په تا اثر نشته
غرخنې غر سره د مینه ډېر وندون ستړې
ثانی دې چرته د حیا د ښکلی عمر نشته
شرنګ د ښنګروته دې په کرنګ کرنګ کرنګونه خاندی
والله په هیڅ یو تاج محل کښې دا اثر نشته
خاښته ملالې کرم لوګې تا ته د نرم خاپېرۍ
د بیبد یا حورې هیڅ نظیر ستا د نظر نشته
ته پښتو نښې د خیال په بیمه رنړا کانې حورې
په دغه سورې د پردو د تهذیب نمر نشته
زما د ښکلی خوږ غریب وطن لوګرې پېغلې!
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکې حورې!

ته به تغیر کړې سوچه پښتنه وې ته نه ئې
د پښتنې اسف د نفس نه ز سیکو لې لورې!
ستا به په فهم و همت د زمو ګینه وی د لو سوچه پښتو تو زړ دا دا ښا لورې!

په دغه زمکه ولې اوښکرې شې
په دغه خاوره کښې مې شومه لوبیدلې لورې!
ستا لوپټه به ستا ښادر د حیا ولې نه وی
ته د تهذیب د کور په سیوري کښې پالې لورې!
ستا پیغلتوب به د عظمت خزانه ولې نه وی
ته د ادب جامو کښې انغښتې نازولې لورې!
زما ښکلې خوږې غریب وطن لوګرې پیغلې!
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکې حورې!

ستا د ځلا پیغلتوب د ښتنې غېږې نه
را توکیدې شي دیو مور د امید د نو غوټې
ته د سمسور سپرلي سپرلي خیال ئې زما د وطن
زیرې دې لا ستا د احساس د سرو ګلونو غوټې
پښتنې پیغلې! پښتنې مورې! د نوي نسل!
چرې به کله شي وخت به را شي د خیالونو غوټې
زموږه سترګې دی هغه د خوشحالو موسم ته
چې پکښې کله شي د سحر د تقدیر د نو غوټې
د قام د سرو بچو مورې! پښتنې میرمنې!
د ننګ په لمبه به غوړیږي بیا د زړونو غوټې
زما ښکلې خوږې غریب وطن لوګرې پیغلې!
زما د عصر د تهذیب د جنت پاکې حورې!

---

تورہ شپہ دہ جم جګړ دے لار نا آشنا دہ
زما خپلہ حوصلہ زما رښړا دہ

د خپل ورک منزل لټون دے لیونتوب دے
یوۀ منډہ دہ خطا نۀ دہ رسا دہ

زۀ یو غدار یم په ما الزام دے
زۀ به چپ کوزم مخ مې بدنام دے

لاس چې د مات شي غاړې له لاړ شي
کوزنه خوګران شړوله ناکام دے

# پښتونه

ئې مرادې شان ګل دخاموشۍ بندي خانه کښې
احساس دِ لکه مړې رُوح دِ نشته په سینه کښې
نیستي درنه چاپېره ده دهستۍ په خزانه کښې
ګونګې. ئې یو غلام ئې بُت ئې پروت په بُتخانه کښې
دَ نښت ئې برابر په خپله لویه خېلخانه کښې
زیاتیږي دِ غفلت د بېدارۍ په ترانه کښې
تیریږي دِ ژوندون د مفلسۍ په ویرانه کښې
عظمت دِ مفلوج شوې د قانون په میخانه کښې
راګیر لکه مجرم ئې د تقدیر په بهانه کښې
همت درنه لوټ شوې د ثواب په افسانه کښې
محتاج د زمانې ته ئې په خپله زمانه کښې
پښتونه ښائسته اوګوره په خپله آئینه کښې

راپاسه دغه تهوئ پر دې او شلوه دَ خانه
لَمګیږه مه لمبه شه ځان ته لاره که روښانه

یو برق شه یو ریښا شه یوه نکه سره لمبه شه
وردو که د تیږو په سر یو شخ شه درغوته شه
یو شور شه یو سخر شه یو بیداره ترانه شه
یو سر شه یو آواز شه یوه مسته شان نغمه شه

دژوند به ویرانئ باندې په منږه راپره شه
مشغله شه د غیرت په پښتونخوا باندې خوره شه
مستي شه د پښتون پۀ لیونۍ شانې جذبه شه
غورزنګ شه د ملي احساس د ننګ چپه چپه شه
شپېلۍ د اسرافیل شه د اُنا یوه تپه شه
عقلونه لیونۍ کړه یو کم عقله ولوله شه
طاقت شه لوړ همت شه د مزدور د تن خوله شه
د ظلم سره جنګ اوکړه د دردېدره جنبه شه
زنځیر دِ بندګۍ مشه توږه که په لاسونو
تقدیر د تا غلام دې راج دې ستا په قدمونو

تۀ خوک ئې! چې بس لوبې دې نو ستا په هستۍ کېږي
ستا ژبه به وي ګونګه چې خوزېږي نو دا غېږي
شمله د ستا که او غورزېږي خیر دې که غورزېږي
که څونږ د خلې او بابې نو ناموس دِ بدنامېږي
دستا بچي که دلته کښې ترقیږي که پړقیږي
دا خیر دې خو ته چپ اوسه بیا امن تباه کیږي
ستا حق به په رڼړا ورځ هم داسې تالا کیږي
هم داسې به پرې بل مدام خوښیږي او غمیږي
په تا به په نهره بیګاه د کېږي صبا کیږي
د هستا تقدیر به د غمې ورانیږي او جوړیږي
هم داسې به دِ ژوند په مړو پښتونه حابیږي
تۀ ګوره ګوره وایه څله به دِ خوږیږي

زما پسه ننگ ته ورکړه حرکت ژوندون د جوړ که
پښتونه د وطن په نعمتونو پښتون موړ که

زما پسه د غریب په مړه ژوندون کښې حرکت شه
لادینی شه د پښتون په گونګه ژبه کښې قوت شه
زما پسه محافظ دِ د خپل شان او دَ شوکت شه
وجود دَ استقلال د خپل پریوتی قومیت شه
خدمت د خپل مظلوم او که دَ خپل نوعی طاقت شه
په چنګ ونګ پښتنو کښې دیوُ والی حرارت شه
لعنت د نفاق ختم کړه په دے سمه رحمت شه
خاتمه د خپل وطن شه نیک نامی د خپل ملت شه
کوشش د یو ولئ د خپل تالا والا محلت شه
ددے تالا والا کور تصور د مصلحت شه
ناسور ترے د تربور لرے که نور ئې د فطرت شه
بس مینه شه خلوص شه محبت شه
نیستی د غاړے لرې که هستئ له غاړه ذر که
داشپه دِ په خپل خان او هم په تمام باندِ سحر که

---

# غزل

زما د ترمو دینو جام واخله
راشه د نوی زړوند پیغام واخله
د ژوند په لاره که زما سره ئے
په ملبو پښے کیده اوګام واخله
ستا په نظر کښے مے پښتو ادلیده
راشه دا خوږ زړه مے انعام واخله
په خُلے مے مهر دے د ویلے نه شم
په سترګو سترګو کښے سلام واخله
لږ خونته هم زما د مینے په سر
ګیده مے ګلونه دا الزام واخله
مُلا که زه د کرم کافر نو خیر دے
خو د یار نوم په احترام واخله
نن ئے په سترګو کښے بس روښړا اوده دے
د سحر زیرے په ماښام واخله
ساګله! ګُل د چرته اونه زړی
بوسه نرے واخله خو په پام واخله

چه پکښې فقط ستا دیدن شي اور د پورې شي پرې
که د دنیا باغ عدن شي اور د پورې شي پرې

چه ستا غنچې غنچې سرې شونډې پکښې نه وینمه
که هر لار گلشن گلشن شي اور د پورې شي پرې

چه ستا د اوښکو زمانه پیا کېږي پکښې
که جنت هم خپل وطن شي اور د پورې شي پرې

چه پکښې نه وي مړه نشه ستا دړې مړاڅو کتو
جوړ که د ښکلو انجمن شي اور د پورې شي پرې

چه نن په غم وي په صبا کښې نه وي خوند د صبا
چه نن صبا شي صبا نن شي اور د پورې شي پرې

چه د ځوک اوښکې د کنجکو په نرخ هم نه تلي
که منلو دین شي اور د پورې شي پرې

سائله بیدنه دي د ژوند د آزادۍ فکرونه
خو چه په مینه د قدغن شي اور د پورې شي پرې

## ن

راشه اشنا! نن مې حالت د بې وسۍ ۲ د کور ر ۴
چه خپل تبکرې تبکرې زړګې راټولې نه شم
ستا بېلتانه په شونډو مُهر لګولے زما
سپېرلے دې تپول ګلونه خاندغازه خندل نه شم

ستا که تسلسل د ستمونو ماتېدے نه شي
پام رقيبه! دا تړون د زړونو ماتېدے نه شي

زه چه زلے زړه لرم په ذکر کښې مستي لرم
چاوے چه قانون د زنځيرونو ماتېدے نه شي

زه پښتون پيدا يمه پښتون به يم پښتون به مرم
دغه آئينه په فريبونو ماتېدے نه شي

تنګے دے د زړه د وطن ټول اولس تنګے دے
تنده مې سين غواړي په جامونو ماتېدے نه شي

سره شي ليونو ند در آدرې د زدره نه تښتي
خُله دَا ستعمار په فريادونو ماتېدے نه شي

ژبه مې ده کړې سودا ګره چه پښتون ګټم
دے کښې ده پښتو په دولتونو ماتېدے نه شي

مونږ د انا الحق مجرمان مونږه ليوني د ژوند
دار سر نشي مونږ به دارونو ماتېدے نه شي

دا زما قلم د نوي مجبور د نوي سائل قلم
دا دَ زبرستو په لاسونو ماتېدے نه شي

○

چرته چه هره ورخ نیلام د قلمونو کیږی
هلته کښې خبر دے که سودا دَ عصمتونو کیږی
چه بندیوان شو رانه ټول زلمی د توردو زلفو
ملګرو! څو مره سپکا دے د زنځیرو نو کیږی
هغوی ته څنګ دَ ترقی سند رے ادوایمه
چه پرورش د کوم او ولس په خیراتونو کیږی
زړګیه! چپ کوړے د ستورو پښتنومات نه کړے
د حق خبرے دَ دارونو په سرونو کیږی
لږکه که راشی په هغو خلقو به څنګه راشی
دَ چا چه فصل دَ ګولو په بارانونو کیږی
چه دا همعصر زیر خواتان اددینم اددایمه
جوړنمائش د ژوند زیږلو تصویرونو کیږی
چه د منزل په طرف ځے نو ځان به ځان نه کړے
د غه منزل په زاره چاډدو تیندکونو کیږی
اے ادکوتړو په ګناه ګکړو صبر ادکړی
جمات ته راشی مسئلے د ثوابونو کیږی

خهٔ په هوښیارو سترګو واؤ ږیدے نادان زړګیه!
خومره اَرزان دِ دانه غوا ړی په ما ګران زړګیه!

زهٔ څوک دیدن ته اؤ دچادرته راا وسلمه
زهٔ خولرمه نهٔ مکان نهٔ لامکان زړګیه!

زهٔ چه دژړوند په کومه لاره باندے تړ کومه
هلته په هر ګام هره ساه دے امتحان زړګیه!

په اوچوشوندو وکه په مستوخماری اننګو
سپرلے دِ راشی خود چا په ګلستان زړګیه!

دا بے خودی دهٔ که هوس دے که دعشق انتها
ګوره تهٔ خپل قاتل ته هم وائے جانان زړګیه!

دا چه دژړوند دیقین شات درته هم زهر ښکاری
خوب د نغوړ کړے ئے د وهم اؤ ګمان زړګیه!

څوک دَ خپل فکر په وطن کښے غلامی نهٔ کوی
د ننګ د تخت دپاسه کښینه شه سلطان زړګیه!

چه دِ سائل د رقیبانو په کوخه تیره وی
کانړی به هم ګڼړے د سرو ګلو باران زړګیه

○

زړه که مې ډېر غواړي د زلفو په تاوونو کښې خوب
مګر وا چرته دې زمونږ په قسمتونو کښې خوب
د خوبولو سترګو غېږې د منم خو آشنا
چاله به ورشي په شړنګا د زنځیرونو کښې خوب
ستا د ښائست سېرلي بس دومره قدر دې اِدکړه اشنا
لکه د ګُل کوم د زړه په پرهرونو کښې خوب
نن د خالونه څه چل دې دَا ښکوا وده دي
دا کوم اعجاز دې چې کوي په انګارونو کښې خوب
لیوني څه دي خو هم داسې لکه زه اُوده یو
نه مو په سترګو کښې خوب شته نه مو په زړونو کښې خوب
ساقي! زما د زړه مستۍ کښې خلل مه اچوه
ستا په شرابو کښې دې خوب ستا په جامونو کښې خوب
د شوګیرو د تسلسل قیصه بس لنډه دا ده
راځه په سورې د وېښتو سنګینونو کښې خوب
ستا انتظار ګړه اشنا ستا د قیامت خېزه ډېلن
هرې ښکلو د رک کړو ستا په قدمونو کښې خوب

ساقله! خدائے زده چې پرېوتي نے بانړۍ ولې دي
زلمي خوښه کړي د جنګ په سنګرونو کښې خوب

ګل به د ستر ګو د لیمو د پاسه خوړنه شي
ستا د دلفریب نظر سپېړلې ترچرته اورنه شي

ګل به آخر څوک کړي ژوند به خپله خاموشۍ کې تېر
ما سره دې فکر چرته دا خاموشي شورنه شي

دا د زړه وطن مې ستا د لاسه دوه ټوټې خو شو
پام! ګورې چې نور بې غرض ونکړې ځلورنه شي

زه چې دردې تور مجبور د ستور سپینول غواړمه
خنګه د ړا پورې دردې پاکې سپینې تورنه شي

زه ستر ګو کې مېنه ته په ستر ګو کې غرور لرې
چرې هم زما او ستا د ستر ګو کې ګورنه شي

نښ په د لاسو د باچا یې خمار خوړلې زړه
خدا یې ګو چې بغیر د بوی چغې نه تکورنه شي

ستا د آشنې خوند مې سېکلې پښتنه مېنه
داغ دې د ساټل ته په تندی خو چې پېغور نه شي

۱۰، اګست ۱۹۷۲ء

○

زۀ اؤ شاعر زړۀ مې خلاص د عشق د کاروباره شو
لاړو د ښائست په لوټې وطن کښې بې روزګاره شو
نن به جوړ مارۀ وو سوداګر د انساني عظمت
ښکلي راستانه بېرته د مينې د بازاره شو
تا چه د نظريه ډبه بوؤ خبره دوه کړه له
خلق خۀ شکمن غونډې د سترګو د سنګاره شو
اوس به مې د ګلوزونو په دواړه لاسه اولوټي
دادي قاتلان مې را چاپېره د ګلزاره شو
ماتۀ ټکې حسن د شعور به دِ ښو او وياله
ګُل چه پسرلی شو، زمن زما دپاره شو
بيا ګورې چه چا چرته ستا نوم ټپه کښې وِخستو
بيا مې دا خۀ زړۀ پرهرونه نا قراره شو

مات چه زمانې کړۀ د مسائل د فکر د فن بُتان
سل لکه نتکي د ژوند په ستړې ستړې لاړۀ شو

۱۲، اګست [illegible]

چه د سترګو په بڼړو ذرے ذرے شی غزل
ژوندے سکوندی لښتے ازغے ازغے شی غزل

د درد دیدلی زړه د درد نوله سکون راوړی ما
خبر که نظر کښے د حالاتو لیونے شی غزل

که په کښے رنګ د پښتنو زلمو د وینو که شو
لرے به نه وی چه د پیغلو ترانے شی غزل

زما د ذهن د زخمونو د سلګو په ژبه
ذکر د یار راته په پښو کښے زولنے شی غزل

منم ستورو! چه سپوږمۍ شند رنبولے ده خو
مایوسه مه شئ اوس تر دا ره رسیدے شی غزل

په میخانه کښے که ساقی دستور بدل که خیر دے
د چا د اوچو اوچو شونډو به لوګے شی غزل

سانګه! منم چه زړه دیو انسان نه لری
خو اوس د دور په حالاتو ژړیدے شی غزل

۱۲، دسمبر ۱۹۶۵ء

○

سرخي چې ئې د سترګو په ککو کښې اور دی راوړی
هم دغه سره شراب دي چې کاسو کښې اور دی راوړی

هر خيال ئې معمه ده هغه څرنه او زه څرنه
ماشوم غوندې مې خيال ورته خانګو کښې اور دی راوړی

بوسه مې ترې وانه خسته نسيم ئې مسوی
کلئ رانه مخ واړه دو ازغو کښې اور دی راوړی

زه څومره نا ديده يم چې ښيښتو ئې ماتوم
ښيښتو خو ئې په عنبره د ښيښتو کښې اور دی راوړی

پتنګ د عاشقۍ د محبوبې پروئې او شلوؤ
د حسن راز ئې او چيړ د لمبو کښې اور دی راوړی

د مينې په درياب کښې د طوفان سره په لوبو
کشتۍ زما د ړوند ده چې څپو کښې اور دی راوړی

ساګه ! ستا زخمي ړوندون له بيا تورې تيرې ی
پر تيرې ی د وختونو آسينو کښې اور دی راوړی

○

دغاړې د خوږ زړهٔ اُخله په سام ولاړه اوسه
هم داسې په سکنړي سکنړي ماښام ولاړه اوسه
سرخي په لوپټه کښې د شفق نه کړه راخوندوه
په لاس زما د ترمو دینو جام ولاړه اوسه
هم دیکښې قربوسي هم په دغې ټکوریږ. تا
خوږ ژوند ته دې بلېشه د پیغام ولاړه اوسه
ترهغې اے زما د تلوسو ښکلې قاتلې
ترهغې نه غلط شومه، مدام ولاړه اوسه
دستور د زمانې په مینځ کښې شرمنده او درَزوه
دَ مینې صرف مینه دې انجام ولاړه اوسه
لمسون به دَ وختونو پیغورونه نهٔ ګټړې
ګُل لخته پښتنې! په خپل مقام ولاړه اوسه

نادانې جادوګرې! دَساتَل په اوچوشونډو
داستان دُ مینې اولوله تمام ولاړه اوسه

○

خپله ځواني مې خاورې کړې په دې لار کښې لیده
خو ما د زړونو نشه د سترګو په خمار کښې لیده
چې د ذلت د خوبه مړه بیدار کړي داسې نغمه
ما د تالا والا زلفانو په تار تار کښې لیده
ما په سرو ډینو لو په کړې دلربائي د فن
نن مې د فن د سوداګرو په بازار کښې لیده
ما ورته او ژړل هغې هم راته او نه خندل
هغه غوټۍ چې ما په څانګه د بهار کښې لیده
[illegible] بې وسي د زمانو د قیصرو
ببرې د اوښکو په ګلزار کښې لیده
ځنې پسې هم زما او چې شونډو ته رسکیدې
د مرګ پیاله مې په خپل تګي انتظار کښې لیده

نرګس ترې اخسته سرخي نظر ته پټه پټه
ساتل د زړونو لیلیٰ د زړه په لاله زار کښې لیده

○

پخپله ړوند یمه د نورو به نظر کړمه
څنګه خوټکي تل په سر د سمندر کړمه
ستا د نظر په دومره لوړ ځاکېر وطن کې اشنا
زه د وطن خانه بدوش یم در په در کړمه
دړوند جنت مې د احساس بندي خانه شوه راته
د رکیبانو د صراط پُل په سر کړمه
خومره سپېره یم بیا مې ښځې د ثواب شوې خوراک
د آزادۍ اسلام آباد ښار کې به نهر کړمه
د توړې لوړې شپې نیت لا امریکې خوندې شو
زه څه نادان یم چې په طمعه د سحر کړمه

... په وبه خله کې د ... زړونو انتهون کوسه
په عمر اد سم په لړ د بر او ت ... د سترګو کړمه

○

شور غلے کوی دَ خوښئ امن خبرے دی
څۀ په وینو سرو لړلے نن دَ نن خبرے دی
ادرشیدو ژروند دَ ګُل په شونډو د خوانئ په وخت
خو مره دَ ویرږے دَ خاموش چمن خبرے دی
خو به داد وخت تیرے حصار کړی لیونے نظر
سترګو! رنړاګانے د باغ داغلن خبرے دی
نن مے رقیب هم زما په مینه افسانے نیکی
دا مے دَ زړګی دَ دوه ټوټے وطن خبرے دی
بیا مے په ماشوم ذهن خوریزی فیشنی تاریخ
خو مره قاتلانے دَ وحشی فیشن خبرے دی
خاندی دَ ظالے زمانے په نادانئ پورے
سترګے د شهید دی که د سور کفن خبرے دی

رابه شی قیامت دَ انقلاب ساڅله! رابه شی
ژوند ورته خوږ دے دے ... فن خبرے ...

بے وسه نظرونه چه په سترګو کښې جرګه شو
ښاغلی رقیبان ئے هم پېکه شو هم خفه شو

دَ ګیدړے دَ بے سره لوګے غم دِ راپه سر وی
را اوګوره چه لړ خو په دیدن باندِ ماړهٔ شو

ما دے چه په جرګه به مے سپرلے کلی ته راشی
پښتو خومے پوره شوه ولے هغسے اونهٔ شو

په تا چه ډیر مئین وو ازُ ستا هم ورته اسرئ دَره
پښتو! هغه خامِن خو دِ په ښته غورزو کانړهٔ شو

خوندونه دی دَ خلوتهٔ دی لوظونه دَ بارانو
نادانه اِنتظاره! غاړه راکه چه اودهٔ شو

قسم چه مے کنرل هغه هم ستا د سترګو توری
خو ښهٔ شوه دلربا چه دَ تهمت داغونه سرهٔ شو

۱۶، دسمبر ۱۹۷۲ء

O

ګولئ وريږي قتل عام دے دَ ړوند ون ګڼي ګڼے
څهٔ د بے ستوګو خلقو راج دے دَ قانون ګڼي ګڼے
په زړهٔ چکو نه نګوي چرته د لرے راځي
سنګئ سنګئ تنکي ويروونه د سکون ګڼي ګڼے
کوم دي دَ امن خانقان اؤ د دانش جادو ګرې
چه دَ احساس مړي پرے ګيږي دَ جنون ګڼي ګڼے
مهٔ راځه نن ليلا په پاګه مينه مستے نيلي!
نن په پيسو مينه خرڅيږي د مجنون ګڼي ګڼے
سا ورته سړے وينځي قلم لګه نقادينو لے
دَ نقد يردنو فيصلے دي د قارون ګڼي ګڼے
زما د فکر په وطن دَ زر د ر اؤ ظلم خلاف
زما نظر عمري قيدي شو د بيلتون ګڼي ګڼے

ښتو به دے چه ننګ خومرهٔ هم د قبر د نوکوي
سائله! خومره بے ننګي شوه د پښتون ګڼي ګڼے

○

ژوند ے تخنادا او تقلید دهم ئے خندل
وخت دې یره ظلمه ژړې دهم ئے خندل

څومره ساده ګی وه په لیسون دچا رقیب
یؤ مشین له بل جدا کید دهم ئے خندل

عقل د منصور نه که زنځیر دچا د دار
ډیره د مرګ لاره شوید و دهم ئے خندل

زاړه د شم دلونے حو صلے نه محبوبے
حُسن دپښتون دو وژید دهم ئے خند

لیمح رانه دستر کو په کوکنې غږید و
څوک مې نظر په سوزید و دهم ئے خندل

وے ئے څه د زلفو مقبرے پله مې ډُرې
ګل چه په ډنډ را ماتید دهم ئے خندل

مه چې پرکړے دینے دشهید زړه ګی خورے
او در مې په ګلشن رادرید دهم ئے خندل

ساتله د پښتو نه په کلکو لاسو پښتنو ستا پښتو قلمه ماتید دهم ئے خندل

# زما ګلاب ته سلام

د تنګ په لار کښې راته نه شي خندا وخاره ګلابه!
ستا مسکېتوب ستا خوږه مینه خوږ دیدار ګلابه!
خپل زړه به خوږم دینې به خښتم هم به هډو کې ښیلم
زه یم روان په داسې سختو کړاو کې لار ګلابه!
زه په تیندک تیندک په ستړي مزل نه ښکارمه
ته د سحر په پرخه لوند په خپل ګلزار ګلابه!
ستا په سُرخئ ستا په شوخئ ستا په ښکلا م قسم
ماته د ستا یخ اننګي دي سور انګار ګُلابه!
تا نه خفه نه یم خو تا خفه کولې نه شم
چې درته اوکړمه د خپل زړګي اظهار ګلابه!
ما نه د ولې تپوس مه کوه بخښنه غواړم
زه چرته څه ماته اوکړه انتظار ګلابه!
زه چرته لرې ځُم خو ګوره چې واپس راځُمه
چې ستا د برخو ښې دي زه به تا ته داسې څیز راوړمه

۱۶ ر نومبر ۱۹۷۲ء پېښور

# ترانې

زړګې چې په غمزه د تور د سترګو ترانې شي
د خیال په ښاره لمه سوکړه تیره شي سپړلې شي
لوګي شي دَ دُړخو د پېغلو سترګو ښیښتنو نه شم
نظر چې نه زړه شي زلمیتوب ې لیونې شي

# ښکلیه اشنا

نظر درته لوګے کړم که بانړه درته لوګے کړم

اے ښکلیه اشنا! ادوایه څه درته لوګے کړم

خوابۀ دا سره هیڅ ستا د زړۀ چاؤدے مینے نښتنه

که غواړے چه دَ ترینه ژوند ون تراخه درته لوګے کړم

○

تا چے په شوخ څټو ګریوان ته اوکا ته — یو نظر مے تا ته بل ګلخانه ته اوکا ته

نه وو بیکنے شوخ ستا دراتلو دانتظار — ما چه چل وهی ګلستان ته اوکا ته

نه وو ښیخوکئے دو دستم دلاس نیوے — زمکے ته مے ورو په ورو مے آسمان ته اوکا ته

او سوزیدو ورېت شو په لمونز ما نظر — ما دے که ما ستر ګو د جانان ته اوکا ته

یاره مے ستا په جنت هم او در نګوی — ما چه خدے دخپل ارمان ته اوکا ته

سو دِ رانه لا پرشی خو جانان دِ رانه نه ځی

غشقه! سود به بائیلے دِ زیان ته اوکا ته

---

# غزل

مینې د ما شوم او تخنولم لیونے شومه
سترګو د خندا سے او چیړلم لیونے شومه

چا د تور د زلفو خامارانو په تپلونو کښې
دا سے په راستنې او خنګولم لیونے شومه

ادس خو ترے سره د عقل پائے په سرونکړشوم
کوم بهار په غیږ کښې لوبلولم لیونے شومه

ناز دو که غرور چه نۀ نے مرینۀ نے ژوندے کړم
ښنۀ نے په خوانئ او ډنګولم لیونے شومَ

ناست لکه ماشوم د خپل ماشوم فطرت جنت کښې ددم
ژوند سره احساس اشنا کولم لیونے شومَ

ښار کښې د سِتم د ارمانونو په لاشونونی
غرق تصوریا د کر خولم لیونے شومَ

زۀ سائل د مینې وګسترګئ غزل غزل کړمه
وخت لکه نغمه اودستنړ ولم لیونے شومَ

○

چه په خندا درته د خوږ زړه پرهرونه نه شي
چرې دِ هم ستا دَ سبا نست غوټۍ ګلونه نه شي

راشه مظلوم تړونده په یو نظریوه لمبه کړه
چه ظالم زړګي دِ پاتې ارمانونه نه شي

بیا د جنون خواني مستي غواړي د مستې مینې
بیا چرته خیال د تورو زلفو زنځیرونه نه شي

په دعاګانو د خوږ احساس دردونه نه خي
څو چه خیرې د شونډو ترنم ټکورونه نه شي

ډېرې د روح جنازه چرته د خندا په اوږو
په دینو سره دِ ترې شینکي شینکي خالونه نه شي

د نظر غشي د زړګي په چم په پام دَ زَدَه
چرته زخمي پښې دا ستا نازک یادونه نه شي

خاموشې شونډې لوستې بیدارېدې وېل ئې
اوروته مه چیږه لوګې دِ پرې فکرونه نه شي

اوده دُنیا یه د ساشل قلمه مه لږ زَوَه
د فریادي اوښکو مات ستوري تندرونه نه شي

○

ما طرفته خکه راکړے نه شی سترګے ‏ ‏ ‏ ګویا سویلرته ے نیولے نه شی سترګے

هغه خوک به او مری چه په مرګ عقیده دی ‏ ‏ ‏ زه یو ژوند پرستیم ما ورکړے نه شی سترګے

مینه به پابنده دی د پښتو د روایات دی ‏ ‏ ‏ سترګو ته سترګو دی خندلے نه شی سترګے

مانه خونے وارړلے سترګه د حیا دے ‏ ‏ ‏ صدا ده د پښتونه اړولے نه شی سترګے

مینه شوه سا شوله د حالاتو نه سکینه

چل د ژړا نه ورځی خندلے نه شی سترګے

مشکنی - ۷۲-۹-۲

○

ما ولو ستو سبق ئے د ژړے ندون دے په کتو کښے

زنبیا ده چه نظر ئے د پښتون دے په کتو کښے

په دار اوز په رسن راته هنر د مینے ښائی

حیران یم دا ئے څه ښکلے مضمون دے په کتو کښے

تیروخم پرچه خوب ته پکښے غیږے لټوم

پوهیږم چه ئے خومره زړه چاودون دے په کتو کښے

زما د زړه زخمونو مبارک مو تازګی شه ‏ ‏ ‏ سترګو خو باد د ئے د نمو دے په کتو کښے

احساس مے داسے دے بوګینه دونے تے واخست

نن ښکاری چه پیغام ئے د ترون دے په کتو کښے

واسترګے که مے ډیرے ورډیدن لوګے ړندے کړے

په سترګو کښے حاتم دے خو قارون دے په کتو کښے

اوس فن ته د سائل ئے فلسفے په ګدیدو دمی؛

اشنا که ډیر مغروره افلاطون دے په کتو کښے

(۱۰-۱۰-۷۲ مینګ بنګ)

ما وې چې شو پوخ سړی کلنی شو ما عقل — ستا یو نګاه ته لېونی شو زما عقل

ژړه وانه بې ژړه خوندې اشنا نه ورکوی — او کوږ د لالی یارانې شو زما عقل

ستا د تورو زلفو بدګمانو خبرې وه دم — ما وې که خمار د خزانې شو زما عقل

خیر دی ستا خونړ و سترګو موجونو — سوز د انقلاب د ترانې شو زما عقل

ما وې د مینې زمانه به جوړه وی — خه او شو غلام د زمانې شو زما عقل

ننه شو چې تر ژړه و نه مې کړ الهام که — ړوند دې په باور د بهانې شو زما عقل

داخله که د سترګو نه د زړه کینې ګورې — ړند د لېونتوب د آئینې شو زما عقل

ستا چې نا د حسن دا د نګ په مینه — بند شو حسن شینې شینې شو زما عقل

شمع د شو لمبو خبره د ډیوې شم — ژړه د مستی شو پروانې شو زما عقل

خال دې خو د زلفو ته بند او خنې او دو — دا چې کینې په دام کې په دانې شو زما عقل

نو که به شوم پوهه چه تو نه شرموم — لاړ د مېکدې ځمخانې شو زما عقل

زاړی به ساقیه که انسان به زړه دی
زړه د غریب لېونی افسانې شو زما عقل

۲۰۰۶-۰۴-۲۳ سوات

# ګیله

ساز د بدن غبرګ د ځړه د درزا قلاره نه کړه
تا چرې هم د خپل مینې زړه قلاره نه کړه
د انقلاب د سور قیامت په درېدېدلې شیبې
تا اسرافیله! مرضي دنیا قلاره نه کړه

# پیداکه

سوز ونه سوزوونکي په سازونو کښې پیدا که
نغمې د انقلاب په زنځیرونو کښې پیدا که
اے بس د یو انسان په نامه پوره شه قلمه!
مستي او ولولې په ستړو زړونو کښې پیدا که
لوئي د انسان مړی د بندګۍ په چاپېرچل کښې
زما زړه جرأت په تقریرونو کښې پیدا که
زړګیه! وینه ورکړه د رنګ زار وطن چمن که
ښائست په مړاوو سرو ګلونو کښې پیدا که
نظره د نظر هغه صبا ورته پیدا که
ژوندون د مست بهار په پرهرونو کښې پیدا که

پیغام د یو بے باکه لیونی انقلاب ورکړه
اے غلنده! شور نه زړې په بادونو کښې پیدا که

# ارادے

دا چه د حشر د میدان په تله — زما ګناه د غربت د لاسه تلی
دا چه زر خوری زما د سر په بدل — ما به سپېرۀ او په بدبخته سلی

د غه غریب ره چا د وبه یو درخ — په خپل بے بکه سو یلو سوردم
که موږ غربت د هلی پوښکرشو — د غه نظام به په مبو سوزدم

زړۀ ترے را نغارم خو بیا هم غاړۀ ستړے لګی
د چم خبره ده بیګاه او د صبا ستړے لګی
د هغۀ خپله هم قاتل نظر په وَس کښے نۀ دے
چه په خطا کړی ستړے پورته رسا ستړے لګی
ادس به ذدے غمه په د غه کوڅه نۀ تیرېږم
دلته به مخ دیو بے ننګه زما ستړے لګی
وعده د سر او خوری بانے له خواوس را شکنه
شپه په وتوده را خوره شوه زنړا ستړے لګی
داسے ئے ستا مینه په خپل پرهری زړۀ ماتیږی
لکه هر وخت چه ئے د ګل په خندا ستړے لګی

○

نږے به شم ترچرته راپیے زما قاتل دے

را زما احساس ته ژوندے زما قاتل دے

ستا خوانی ئے گل کړه اؤ زما خوانی ئے خوړے

خکه خوے وے چه دا سپرلے زما قاتل دے

نوره ئے پښتونه په کوم رنګ قربانی ورکړم

را چه ئے میله دے به خنجرے زما قاتل دے

ستا د زرپرست حسن فریب به ورته تیت شی

څنه هم که د ځوانئے حوصلے زما قاتل دے

اے مظلومه عشقه اوداږے خومره ګنهګار کړمه

خپل جانان ئے څه چه هرسړے زما قاتل دے

۳، جنوری ۱۹۷۳ء

○

څه له راته وائے اوګے سترګے دمرېږی نه

لوګه لیونئ وی به پیغور هلو پوهیږی نه

نن خو د سترګو کښ لیچونه رقیبان نکی

دا غرور د دوئے د نظرونه جدا کیږی نه

خدائے زده چه ترکوم خوامسافر وکډے اوکړلے

نن به دغه پورے چم هغه پلوے بلیږی نه

هرګل راته اوس هم خپل په وینو سور ماضی ښکاری

خدا شکو په سپرلی ئے د سپرلی مینه ما تیږی نه

دا پر خور د چاد لوپټے د شفق سورے شو

سور کفن نه نن د لاله زیړ نرګس پسخیږی نه

○

دا قانون د نچا قانون دے دا نظام د نچا نظام دے
دلته قید دے هلته بند دے دلته دار دے هلته دام دے
په اظهار د پاکے مینے تما قسم پابندئ دی
دا لا څومرے مذهب دے دا لا کوم قسم اسلام دے
په دے پاکه ګناه خیر دے ګنهګار سهی پښتون یم
دا مے ورور، دا مے عزیز دے، دا مے کلی، دا مے قام دے
دا په دے بازار کښے کیږی سوداګرو د سرو نو
دغه ویش دے که تالان دے، دغه لوټ دے که نیلام دے
زنځیرونه دی او مونږ یو، د وحشت باچا کړی ده
دا د کوم جرم سزا ده دا د څه شی انتقام دے
زه انسان یمه ژوند غواړم د ژوندون حقونه غواړم
دا په ما د څه تور سکی دا په ما د څه الزام دے
که آزاد یم ګرم په څه یم چه باغی د پابندئ یم
نه مے خیال د چا پابند دے نه مے زړه د چا غلام دے
په دے یو وطن کښے اوسو، لر بیوس کوم صاحب!
ستا په برخه نیک نامی دی زما ځ دے چه بدنام دے

اے ساقیه! دو که نه شے په خندا ئے منتیر ؟ د زړه
دا ساقی نه دے اجنبی دے و سره د زهرو جام دے

ما دِ کتو خوږ زړونه له علاج په اداګانو کښې
ته کوې په ماتو زړو دغو رواج په اداګانو کښې

موږ ته لوستې چرته دي د مینې د جدّت سبق
موږ خو دِ کتلو زړو د رواج په اداګانو کښې

مونږ برسنده وه سترګې د آئین نزاکتونو ته
مات به دِ تصویر شي د سماج په اداګانو کښې

وران چه دې په ډیره بې دردۍ د مینې کلې کړو
ته رقیب ته ورکړلو خراج په اداګانو کښې

ته خو وې چه مینه ملنګي ده باچائي نه ده
اوس خو دِ غرور شو د سر تاج په اداګانو کښې

مونږ ورکوو نور فریب د مینې مظلومانو ته
پریږده دَوَه خوبونه د سامراج په اداګانو کښې

زړونه چه د ښائست د ګلستان شو په لمبو کښې ګیر
رنګ دِ نه دي هیڅ د احتجاج په اداګانو کښې

پوهه شوم هله قاتله یاره! چه دِ قتل کړم
اوس دِ پټه پښه نرۍ کړې مزاج په اداګانو کښې

بیا به دِ خدمت بې د سائل د دنیو ګل نه شي
بیا به دِ نازونه شي محتاج په اداګانو کښې

ستا خوږې مینې نه چې خپل زړګی قریب اوینم
ستا د ښائست په آئینه کښې ځان غریب اووینم

لا په سندره کښې ستا مینه چیړلې نه وی
چې په دام پښه کیږدم اؤ مخې ته صلیب اووینم

سترګو رپندې ښئ خو ښتوې بې غروره نه کړئ
هسې نه چرته د جانان خوا کښې رقیب اووینم

زما قلم زما د ژوند تصویر ته چاپېرې نه ښو د
زه به په خپل ژوند ته خوارۀ د خپل نصیب اووینم

نن شراب څښمه خو د خوږ په سرو شونډو کښې څښم
په دې صلاح کښې څوک قاضي اؤ که خطیب اووینم

کوچ کوي کړې بازوي څوک پښتانه مسافر
نن به که خیر وي نو کنډرې د تهذیب اووینم

چې د جنون په کښتو رو کښې د رګړې زهر د عشق
سائله خټک به ستا د رنځ هغه طبیب اووینم

ستا د اداګانو اشتعال د ځنګ خبرې کړي
دا لا د چا لمسه ده دا مینه څنګ خبرې کړي
شوخ مې دلیمو ورته جوړ حال د نوي ژوند او دې
ئې خوې د ژوند قاتل په نوي رنګ خبرې کړي
ستا بانړه چه پرېوزي پښتانه راته تېغ اودردي
دې مرګونې عشق ته مې پېغور د ننګ خبرې کړي
خیر د دي خوانۍ پوره ته چه د بغاوت نهٔ کړي
ګرم شو محفل د رباب خوا کښې چنګ خبرې کړي
دا چه پرې هر وخت د ګودر غاړه سند زېږه دي
په سانګه! دا پېغلې د کرم ملنګ خبرې کړه

# حیا

وخت څهٔ بې حیا شو د حیا نه حیا اُخلي
څنګه زمانه شوه د هر چا نه حیا اُخلي
وژني مې ملګر د او د پښتو مې ماتوي — مینه لیونۍ شوله زمانه حیا اُخلي
ماتې شي په سترګو کښې ګُل د خوا ازغیه — کوم نظر چه ستا د ګلستانه حیا اُخلي

○

چه هر نظر نه وی د زبادو د احسانه سره
ډیره به ګرانه ګذاره شی د جانانه سره

ببل زړکیه! که نغمے د د ګل نه و ینے
کومه رشته د ده زنځیر او د زندانه سره

هسے نه ستا د یک ستم د رسوائی سبب شی
نادانه یاره! ډیرے مه چیږه ګرایوانه سره

د مغرور حسن ګومے بیا و نیوته تنګے ښکاری
بیا مخامخ شومه د لوی امتحانه سره

مانے مکان زړه نه مکان ستا په ګوتے ګنو
خو وم اشنا ستا د نظر د لامکانه سره

د پښتون عشق نه د سجده و د وفا طمع لری
ژوند ے ترلے دے قسمت دا سے نادانه سره

ډیر نرم نیونه د چپیره د خوانی نه ښکاری
سنانه! د به زړه د ے د کوم ارمانه سره

۲۰ مارچ ۱۹۷۲ء مسکوره

○

آدم لہ بیا چیرې چا تا روښه درباب دی
دفضا نغښند ریزه کړه نغمې دَ انقلاب دی

دا تورہ لویہ شپہ چہ ورته غلې او غوږ نیوږدہ
جوړ دوه مئین د لار چرته په سوال او په جواب دی

دا یو بل چه په ډوکو کا سو او دلی او مستئ کړي
دا ئې په میخانه کښې څوک را غونډ خانه خراب دی

مُلا دستا دوزخ د خپل جنت نه خبر نهٔ کړم
دَ لوګے لیونی څهٔ په عذاب او په ثواب دی

زمونږ د پاکو وینو نهٔ حساب او نهٔ کتاب شته
دَ ظلم د ګولو خو چونه لا په مونږ حساب دی

ستم د شهنشاه به پړ او س بیا د لیبنول غواړي
خندلی چرته بیا په دے چمن کښې سور ګلاب دی

دا تېز ی اوچ لیئهٔ د کربلا تندے وهلی
ساقی لهٔ! د ډکه شوی د سراب په آب وتاب دی

۲۸، اپریل - ۱۹۷۲ء - مردان

○

چه سرے رقیب واخست اُ زړگے د ښکلي یار شو
زما آخر په ځان کښې په کوهٔ خهٔ باندِ اختیار شو
بس اوس وے چه قید یم د حالاتو په پنجره کښې
دا ولے ستا د حُسن په ښکره نشه کښې ښبار شو
دا مینه به د زړونو زنګدن اوګنړو مسکرو
تر عمره زړهٔ چهٔ دون شونه خودار شونهٔ دیدار شو
چه کړمے چرته نهٔ وړے د حالاتو تیښتهٔ نهٔ کړی
دا کلے آخر ولے په دے نیمه شپه بېدار شو
مشکور یم زمانے ستا د دے شکوے پیر زوینو
لمن مے خهٔ تنده ده په د اخونو لاله زار شو
هرچا وے لیونے دے بس په دے سېرنے شو
دے ښبار کښې څوک د مینے په ګناه باندِ سنګسار شو

سپیرهٔ یم خفقو مایه کانړو تخے دَ قدری کړی
خپل سیورے مے رقیب شو خپل جانان راته اغیار شو

مرطکان. سوات ډانرېزی

○

پرے به وزی خوږه په سجد و پریوتل زړه نه کړی
دے ګنهګار سر زما زړه تښتیدل زړه نه کړل
ستړے که مو ډیرے مسلسل شوګیرو سترګے کړے
موږ د چا د زلفو په تالو نو خانګل زړه نه کړل
دلته معتوز شی چه باغی د خپل ضمیره شی
موږ ه خان دښمنو خپل ضمیر خوشحول زړه نه کړل
تیښتنے ګنړو د زمانے د روایا شو نه
خکه مې لئے نه یو داغ په کول زړه نه کړل
خانګې چه پرے تل زما د فکر زرغونے غوټئی
ما د هغ داره خپل نظر اړول زړه نه کړل
ما نه ملا خانته د تسکین مسئله اوګوره
ما خو د جنت په حورو زړه غولول زړه نه کړل
خلقو د نړون د ذوقه ډیرے مړے وخښے
موږ ه رقیب خیلو بیل بیل زړونه تړل زړه نه کړل

تنده چه سائله کړی سره د چا د دربت احساس
ت د چا ګټرنګ په ادا کانو نیکل زړه نه کړل

۱۹۷۳، ۰۰ درښند

○

زاړه دُ چرته ختلې اوږده شپه مو په سر پرته ده
مانړۍ نغښته پیرۍ ماته په کودر پرته ده

منبه یاره! پام چې رانه شي په دغه لورې
هغه د مينې ښار په کنډر کنډر پرته ده

هم د وحشت، هم د غفلت هم د اقرار انتها
د لالي دانه په سجده د چا په در پرته ده

دلبوتې مینې نیکړې انسانه سنګر وه!
دخپل سره دوږۍ په لاس کې د نهر پرته ده

داب د کرمو دینو نیک دے یا د کانړي کر بنې
که غر ایکم دے هم د تلوارے په سر پرته ده

ماضي اوس راشه ليونتوب بې د وحدت اوګوره
خټه ریزه ریزه په لاس کې د دلبر پرته ده

آسمان منبه شو تماشه ده شاعر نوب بس ئ،
په موسم ریزه لوپه د مازیګر پرته ده

خدائے خبر څه شو او چې شوندے جنتان سا شله
نن لالچي ميکده خوشې د کوثر پرته ده

دا غزل زه تې خان په دوره کې لیکلے شوے دے. که یې یعنې د پښتې کې دوه کټې نمده
رسيد زکے جاب شو) ۱۹۷۲ء جواب

○

په زړګي مې لا د ګلو باران سنګے شي
چه ګیلے دې په سرو شونډو کښے خیرے شي

دېر خوابږه دې د ستر خو خبرو اخلم
ستا خبرے چه ترخے شي لا خوږے شي

یاره! کرم نه ئے که ما په کانړو اولے
څوک خپلېږي چه خپل زړه چانه پردے شي

که قاتل ئې د نخرے ځوانئي نه دې
اننګي دې تهروا خله چه سپرے شي

نه د حُسن لېونے ئے زه د عشقه
یو ځائے دوه لیوني کله اوسیدے شي

لو پېته لږه د څڅ نه نیمګښو کړه
چه مې اوچې شونډے لږے شان لوندے شي

سائل دا ګنړی صحرا چه د ارمانونو
ستا په مینه که سېدنم که لیونے شي

دا بوزړه یم چه ژاړم د سندرو په وطن کښې
کنه! دا یو رواج دے د نغرو په وطن کښې
ژوندی چرته خوک شته کنه چه لږ تپوس ترا د کړم
دا ولې خاموشي ده د خبرو په وطن کښې
اے حسنه! د یار ګل نه شے زما د عشق په طمعه
عشق نه کیږي د ژوند د سوداګرو په وطن کښې
آزادي نه کړو خان د زرپرستو د رواجه
دا ګل خواني د خوږے کړه د زړو په وطن کښې
فکرونه لیوني دے راته هیڅ بے هیڅه وژني
پیدا یمه د داسے ستمګرو په وطن کښې
ښه زده کړه د ښنګلو د ژړا باتونه ملګرو!
زه اوسم د خونګړ اوکنړرو په وطن کښې
زه یار ته کے نه شمه یار ما ته کے نه شی
پانده کړه خو د وخت د جادوګرو په وطن کښې
به زړه دا یشنیا کښې لا د مرګ په خوب اوده یم
دا حال دے د بے وسه دانشورو په وطن کښې
ما فال د مینې اوکوت د نجوم په سیپارو کښې
اوس ئے د خط ژړدان دے د دلبرو په وطن کښې
خانست لرې بدنام به وی بندی به وی سانګه!
یوسف د بیتنو د بے نظرو په وطن کښې

(۲۰-۹-۷۳)

زما د زړونو ښار سرو کوبارا دریږي
بې تنګ کینه تاسترو د جانان وریږي

خانو منم من منم خو دا شو دخته دے
انګا په بلوچ ساداناو وریږي

خه د مینې ذیب د تاج محل د سر دی
کانړي د زړو د مسافر په کاروان وریږي

چه ښرسته م کید په تا ګریوان کښې
په زړه هغه شیبن لي د زړون وریږي

دا چه موږ ستاسو هغه سپرلي زاړي
د ضروستر کو تجرګي ارمان وریږي

سنګرو! تاسو یئ د کوم قسم ښکلا په لټون
دا چه مو خاوره د ښکلا په ګلستان وریږي

(په بلوچستان کښې د فوځ کشي نه پس اولیکلے شو)

## وزرے

ن په جونګړو کښې چه سوزي د زړوندون وزرے
چادي تړلي په بنګلو کښې د قانون وزرے
ملګرو! اوغړوئ سترګے د خیبر په څوکو
په باد سپړے سپړے الوزي د بیلتون وزرے
خلقو دا موږ د لوس لغړ زلمي لغړ مه ګڼړئ
موږ یو د برالوت د پاره د پښتون وزرے

مغل به هغه لیونوته کومه لار اونیسي
د چا چه فکر شي د ستر خوشحال دیون وزرے

په پېښور یونیورسټۍ کښې د یوم خوشحال په موقع

O

ښنځ به دِ په سترګو کښې نشې خار زړګیه! اومنه
مۀ کوه دګل اشنا دیدار زړګیه ! اومنه
مړ به شې د تندې کربلا ده دَ جانان سګلې :
نشته په دې سترګو کښې خمار زړګیه! اومنه
تل به استحصال ستا دې وسوا رمانونو کړی
ښکلې شان سامراج وی ښکلې یار زړګیه! اومنه
عشق ته قسم ورکړه چه ما ته یې پښتو نکړی
بیا یې پښتوله مۀ اوړه د دلدار زړګیه! اومنه
ستا د ژوند په سیمه لا لمبې د مړې ګید ونۀ دی
مۀ درکوه زیرې د بهار زړګیه ! اومنه
ژوند چه درکوی نوخپل ښاسُت ژوندګې کول غواړی
بیا نې د دکه نۀ شې په اقرار زړګیه! اومنه

تا ته نې نظر په اشارو کښې ست د خټۀ کوی
لوټ به دِ کړی مۀ خۀ په دې لار زړګیه! اومنه

زما په ډډاړ د اډکو ناستو فرښتو! اوليکئ
زما په سرکښۀ ليکئ نو په ښېښتو اوليکئ
د پاڅې مينې ګنهګارو! چه منکرېږئ نۀ شئ
دَ رقيبانو الزامونه په تندو اوليکئ
په ښانستونو پسې درکوليونو منکرو!
زما په زړۀ کښې دګل مينه په ازغو اوليکئ
زما په لاسو کښې په ښېښو کښې ديوتاګانو دَوخت
د ژوندګئ نوم دَ اجل په زولنو اوليکئ
د زنځيرونو خانقانو! دَ وحشت ځامنو!
ما په قطار کښې د ترونډون دَ ليونو اوليکئ
اے شاعرانو! دَ قام په آزادئ مئينو!
حال د بلوچو ماشومانو د سنګو اوليکئ

د آزادئ عالم بردارو دَ نړئ قامونو!
اوس دَ نړئ نقشه کښې کور د پښتنو اوليکئ

دَ خوږ دوست محمد اقبال دَ وادۀ په مشاعره کښې
واورولے شو ۱۹۷۵ء متهنئ

○

پېرته چې زړه وی سنګار ړوم قلم — هلته یکه دمه ګړه ډوم قلم

دلته د غوږ ده چې پښتون ګټم — هلته چې پېسے دی خوځوم قلم

زه که پرورش د قلم او دنګړم — ولے به مکروه شرموم قلم

چرته چې ننګ نه ئیکی پت نه ئیکی — هلته به والله چې ماتوم قلم

دنده رو ګوری جمال لتوی هر طرف — خوښ مے د پېغ ګناه ګرم قلم

دے په ما اوُ زه په ده بدنام یم۔

ځان سره به دار ته خېژوم قلم

○

زه که مړا وے سپرلے او هم د ازغو په وطن

خدائیګو ازغی رانه قابض دی د سپرلو په وطن

یوه جونه دِ شی دیو غضب د اګرده سنړی

قارون زادګان د مستئ تق چوی د سنګو په وطن

هغه قیدی او دا زما دے وسئ خاموشی

روند تصور دیو معراج دے د لمبو په وطن

ځان رانه دا سے دماحول په آئینه کښے ښکاری

لکه سرے چې مسافر وی د پردو په وطن

چې د خودئ د غرور سرے په آسمان لګیدو

ټیټ نه ! پیکه هغه با نره شو د پښتو په وطن

د سوۓ ساندو په یلغار کښے هم غزل لیکمه

خدائے پوه شاعر یم زنګولے د نغمه یمه ۰ ۸۰

شکے شکے شنه زمکه ده سور هاړ دے
دَ احساس ګل ئے موسکے پکښے ولاړ دے
څوک هم شته کنه چه دومره خوږے پوئے کړ
داسے کور دے که ګور دے چه لټاړ دے
دَ زلمو دَ الوانی دینو په طمع
دړوندون د شهزادګئ د شوندو پیاړ دے
دَ رښتنو نغموګښے ویر دَ ویرانئے دے
دَ آدم د دینو نو چم دیجاړ دے
ببل پریږدئ چه زخمونه خپل اوده کړئ
باغ د مینے دَ خزان د غمه ښاړ دے
چه ماضی او مستقبل ترے نه داغ نه شی
خفه دا چه په بائیلی سرمو ویاړ دے

نه به خنک شے پکښے خوښ نه زکه یاره!
د سائل د شعور تبول وطن کاړ کاړ

منکرِ پښتنو! لږ په پښتو خو کول غواړي
دا سترګے د حالاتو دی کړے سمول غواړي

روان په سینه لاړه وو قیدیان آخر په څه شو
زنځیر ماتول غواړي دا منزل پریکول غواړي

انجام سے چه د هرے بلا سترګے راته ښائی
دے جام کښے شربت دی او که زهر کوتل غواړي

بیوه د بغاوت تپه چه سرد تیغه تیره کړي
توکل غواړي سوچ نه غواړي دے دار تختل غواړي

د مینے د جنون جذا زړګو کو ښیر دنکو
دا کور که جوړ وے نو خو خدا ورانول غواړي

ګرمی که ورکوئی د یخ ویښے به وسنی نه
دا مرے ایرے پوکل غواړي دا اور بلول غواړي

معنے د لیونتوب به له دے به څه کیدے شی
دا غر که د فولاد دی دا سر ماتول غواړي

دا زیړ زعفرانی رنګ پړ آخر چا دے اړولے
دا مخ خو د ژوندون په آئینه کښے لیدل غواړي

چه مونږ تږی ترخښے نه شو اغیار ورپسے لامبی
داسین که آب سین شی هم پرے اور لګول غواړي

ژوند ګران دے په دنیا کښے د بے سره رقیبانو
باچا خان ښتنه کول غواړي یا ترکیده کول غواړي

۱۹۷۳ء

نظر چه دے د ستر گو په جنت کښے لیونے شو
یو شور شو چه سائل په محبت کښے لیونے شو
وختونه ورته تیت شو خو دا سر ورته تیت نه شو
دا زړه چه دے پښتون شو په غیرت کښے لیونے شو
رهبر د زمانے شو یو سبب د انقلاب شو
چه زړوندے فلسفه شوه ماديت کښے لیونے شو
اوس مرد قلندر شو اوس د دهم نه منکر شو
دا ذکر چه زما په حقیقت کښے لیونے شو
د دار په سر ئے اووے چه باغي يمه منصور يم
جانان ور کړله غيږ چه بغاوت کښے لیونے شو
پیغام ئے د خوانئ اؤ د مستئ زړونو ته راوړو
سپرلے چه د موسم په طبیعت کښے لیونے شو

لائق شو د بخښنے د حساب کتاب نه اووت
سائل د اداګانو په قیامت کښے لیونے شو

۱۹۷۵ء رتهانه هوسنه

# لټون

د عقل د ګوهرو خزانې ې پسې لوټ کړې
د مستو سرو شرابو پيمانې ې پسې لوټ کړې
پيړۍ ې پسې لوټ کړې آستانې ې پسې لوټ کړې
د ژوند د فلسفيانو زمانې ې پسې لوټ کړې

يو خيز دې چه ترا وسه ې پيدا نکړو ملګرو!

په لويو او ذرو ذرو خلکو کښې پسې ورک شوم
چه جګ وو له غروره په پټکو کښې پسې ورک شوم
چه نور ې د ايمان ده په پښتنو کښې پسې ورک شوم
چه ژوندۍ په پښتو دې پښتنو کښې پسې ورک شوم

يو خيز دې چه ترا وسه ې پيدا نکړو ملګرو!

د خېل وطن په دنګو غرونو کښې ګورم
د سرو بيابانونو په ريګونو کښې ګورم
سيندونو کښې ګورم آبشارونو کښې ګورم
چپوته پسې د اسکم طوفانونو کښې ګورم

يو خيز دې چه ترا وسه ې پيدا نکړو ملګرو!

خوړکۍ ې لټولې دي چينې ې لټولې
د بونه ګټې تړې او سينې ې لټولې
سرې شګې کا نړې بوټي وني غنې او شېلونه
د ټولو کاشنا تو آسينې ې لټولې

يو خيز دې چه ترا وسه ې پيدا نکړو ملګرو!

د ستورو په محفل کښې اتڼ جوړ مې په روڼ نظر کښې
د شپې په کوهِ قاف کښې دَ آسمان په سمندر کښې
د زړونو د پاستنزیبو د ګونګرو په شرنګهار کښې
دَ نمر د ښېرې خوب کښې په بیدار ښائسته سحر کښې
یو څیز دے چه تر اوسه مې پیدا نکړو ملګرو!

کشتۍ لښتولې مې سیرلې دې که باغونه
سېلا مې پانړے پانړے کړه مُسکي مُسکي ګلونه
کړه جوړه مې د شبنم په اننګو کښې پرهرونه
سورې مې کړه په کوتو د لاله دَ زړه داغونه
یو څیز دے چه تر اوسه مې پیدا نکړو ملګرو!

بارے مې پسې ګرځ کلي کوڅے مې پسې ګرځ کړے
ځنګلے ښارے جاړے او میرے مې پسې ګرځ کړے
درے مې پسې ګرځ کړے تنا ترے مې پسې ګرځ کړے
د هر څۀ نه ورتېرشوم بنارے مې پسې ګرځ کړے
یو څیز دے چه تراوسه پیدا نکړو ملګرو!

د سترګو په غمزو کښې په کږو وږو وبنړو کښې
په ناز په نزاکت کښې په کوکښې په کتو کښې
تق چاودي د خندا نه په پرانستو اننګو کښې
دَ ورېځو په لیندو کښې د ښین خال په ګډېدو کښې
یو څیز دے چه تر اوسه مې پیدا نکړو ملګرو!

د شعر په ډالۍ کښې د رنګين غزل په ناز کښې
د زړۀ د وير په سوز کښې د ټوټې ټپې په ساز کښې
د غم په ترانه کښې د درد د نوې په آواز کښې
د زړۀ په مات رباب کښې اؤ د مينې په شهباز کښې
يو څيز دے چه تر اوسه مې پيدا نکړو ملګرو

يو څيز دے نوم ئې نۀ راځي احساس مې تخنوي
ماشوم زړۀ مې سکوندي رانه خيالونه تختوي
جذبات مې پاړوي خوب مې هر وخت بيداروي
لمسون کړي يو آواز ته مې زر زر تياروي
يو څيز دے چه تر اوسه مې پيدا نکړو ملګرو!

تسکين مې د زړګي په يو ساده شان فيصلے شي
په سور شان انقلاب کښې بس په لاس باينۀ راتلے شي
زړۀ وائي چه يوه ليونئي مسته څڅه غواړي
ده هم داسے چه ورکه په کاواکه خُله موندے شي
يو څيز دے چه تر اوسه مې پيدا نکړو ملګرو!

ورتير - ۳ ستمبر ۱۹۷۲ء

---

# جنازې

خبرې د ماضي تر بنې ترخې اوږدې دي
منګو! څه زړه چاودې د ګرېدن کړون قيصې دي
يادونه نه کولې شي دَ احساس سينه غلبيلَ نړي
د ننګ د وطن ښاوُرې دَ زلوپه وينو سرې دي
اوس هم مُنظر د انقلاب په زړه وائي
سوريت دې ترقها ر دې پورته شوې سرې جنډې دي
څه پاڼې دَ قرآن دي څه د ميانډو تورې څڼې
الوزي په کولو کې څه د خوبند ولوپې دي
يا به کربلا شوه شور دې چغې او سورې دي
دَ ژړوند به او ګوبار دَ ماشومانو جنازې دي

# سیاست

ما د نواب د جارو کښو صف کښې منه اودرده
زه نر مزدور یمه د ورځې دوه روپۍ ګټمه
زه پرورش د خان نواب د سیاست نه کوم
زه خوار غریب لره سامان د زندګۍ ګټمه

# سندره

چه پېغلے ګل شی ستا د غونډے زړۀ شنۀ خالونه
هغه سپرلی ته انتظار اوکړه
چه تۀ اوربل خوروے زۀ پرے در شیندم ګلونه
هغه سپرلی ته انتظار اوکړه

چه تۀ د سرو ګلو په منځ کښے سره په دلۍ ښکاره شے
زۀ درته ځغله په تېپه پورته کړم
د غوټو په سرو پولو ګل دلۍ ښکاره شے
زۀ درته ځغله په تېپه پورته کړم
چه ورته غاړه ږدی د لرے دوه بابللی زړونه
هغه سپرلی ته انتظار اوکړه

چه تۀ د ګلو تږل کښے او خاندے په شا واوړے
ګلونه اورې چپے چپے شی
چه دے دُنیا ته د ښائست سېله دُنیا راوړے
ګلونه اورې چپے چپے شی
چه نشه کړے په یو ځآ دا د زړۀ بیدار زخمونه
هغه سپرلی ته انتظار اوکړه

چه دِ په ترا پو د ترا پو وښونو د ګل کړی اوج پاڼه
نشه خندا دِ مات زړګی رغوی

چه ګُل غوټئ دِ کړې د مراد د انګو سرو نه
تشه خندا دِ مات زړګی رغوی
چه نرګسی سترګې دِ سرې شی تکوی چکونه
هغ سپرلی ته انتظار اوکړه

هغه سپرلے چه ستا بے وسه پیغلتوب ګُل کړې
کړې سنګلاخ کانے را چاپیره دِ تا
زما رنځونو زیر پیر کړے زلمیتوب ګُل کړی
کړې سنګلاخ کانے را چاپیره دِ ت
چه شی سبانست نښے خوازهٔ خوبونه
هغه سپرلی ته انتظار اوکړه

هغه سپرلے بس را روان دے په پوپونو راځی
اے د زړګی مینے! زیرے په تا
په دنګو غرونو را وُزی په سمونو راځی
اے د زړګی مینے! زیرے په تا
بیا د همزولو سره وایه د ستائل شعرونه
هغ سپرلی ته انتظار اوکړه

# ژوند خوږه ئ

دا نظم هغه وخت لیکلے شوے دے کوم وخت چه د ایوب شاهئ
د "لسکلیزے ترقئ" د آخری جشن نه اولسی بغاوت شروع شو
او اولسی مشران، طالبعلمان، دانشوران او محنت کش جیلونو
ته لاړل. خو تر ډیره نه وه ساتے شو او آخر ایوب خان
استعفا ورکړه.

که د وطن د مجبورئ په وطن کښے تو شی
که د وطن د حفاظت کولو په وړاندې سرے شوے
که په سرو وینو کښے تو پونه د خپل تن لاهو شی
که د اکچه غوټئ د ظلمه بے موسمه تو ئ شی
که لوږے تندے تکلیفونه زخمتونه راشی
که په کوټکو په لوړ د ملک اړے کړے شی
که د خپل قام و ملک خواخوږی شی په جیل د ننه
که مز دوران د حال په سور بټو کښے نینے نینے شی
که حق پرست د حق په جرم مجرمان ثابت شی
که مظلومان د ظالمانو په چړو قطرے شی
که قلمونه د چاپ بند شی په جادو د بستم
که د دوران په نظر باز د رنړا ورځے شپے شی
که ایمانونه غیرتونه عظمتونه لوټ شی
که هر انسان ته د ژوند غیږه تنګه سرلے شی

که د وطن. پېغلې پېړدۍ د دیاځنډرې کړي.
که په کوڅو اؤ بازارونو کښې ګڼلې ګڼلې شي
که د وطن ستورې سرتورې شي بهر راووزي
که د ظلمونو خلاف هرطرف نعرې سوکړشي
شي دي خو ډېرې د یارانو حوصلې لوړې دي
همې ادبنان لوړدي اؤ همې دروازې لوړې دي

خو

دا د جذباتو چه سنګار شوی دی زلمی د وطن
دانقلاب په تږبه نن جوړې توبې ماتوی
د لنډې کلیزې ترقۍ په آخري جشن کښې
د غلامۍ د زندګۍ سره وعدې ماتوی
د حق شراب نه د جمهوریت پیمانه کښې اوڅښل
دا سې نشه شو ساقي؛ اوس به د کاسې ماتوی
ته لا د حق د لیونو لیونتوب نه پېژنې
هغوئ چه مست شي بیا په ښنوکښې زولنې ماتوي
دادا ایمان اؤ د غیرته ډک مات شوی زړونه
د جېلخانو اؤ د زندان تورې تمبې ماتوی
اوس دې د دم اؤ د جادو په کرښو نه راګرځي
دا چغې تاسو اؤ تاله حوصلې ماتوی
نظر دې څه شو اؤ وزرې درنه چې اود یښې
دا داسې دم دې چه چوړنې به دې ښیښې ماتوي
دا سپینې لوګې کېدل نه غولوګې شو آخر
اوس به نظر د بد وسترګو بې ښیښې ماتوي

دے کښې درې درې ماشومے هم شامل دی
دا به ریکارډ د هر تاریخ دَ زمانے ماتوی
دا تعداد کشتئ چپو ته د بېتم در غلے
دا دِ دَ زور دَ طوفانونو حادثے ماتوی
ننګ لړزیدلے دے اوډمینه په درزا ډاشنا!
د دا په د دریځو د کوبخونو فلسفے ماتوی

ښوبه زمونږ دُنیا په جیب کښې د قادرون پښه وی
ښو به خوشبو په دے غوټو کښې د ژوند ون پښه دی

---

# داغونه

یاد دَ زمانے دے نهٔ څهٔ رحم نهٔ کرم لری
غم دا سویلو دے چه خورے دِ پرے کمخئ نهٔ شی
ستا دستر کو توری دی دا غونه مے په زړهٔ نهٔ دی
مهٔ را کوره داغ دِ ترے دا سترګے ګُل غوټئ نهٔ شی
یام که څهٔ په غلیب دلیونی عشق رقیب نهٔ مے
ما کښېره اددهٔ خوستا غلاګانے لیونئ نهٔ شی

---

# ړوړئ

سازونه دي سندرې دي نغمې دي په ګېڅم کښې
مستۍ دي شرابونه دي نشې دي په دې څم کښې
مزې دي پښخیدونکي تماشې دي په دې څم کښې
جنت دې او د حورو تهقهې دي په دې څم کښې
خوبیا هم چغې اورم چه ړوړئ ړوړئ

ورانېږي د هوس د ادا ګانو نه دا کلي
تښتي چوي د لیونیانو خندا ګانو نه دا کلي
ځمکېږي د جشنونو او تجلیانو نه دا کلي
والله! په بله اوړي د مستیانو نه دا کلي
خوبیا هم چغې اورم چه ړوړئ ړوړئ

غلې دي امبارونه امبارونه په دې ښار کښې
اسمان ته رسیدلي محلونه په دې ښار کښې
شیندلي شي! جوړېږي دولتونه په دې ښار کښې
خرڅېږي په پیسو محبتونه په دې ښار کښې
خوبیا هم چغې اورم چه ړوړئ ړوړئ

هر ښپول جنت جنت دے هر ګلشن جنت جنت دے
هر کور جنت جنت دے هر مدفن جنت جنت دے
صبا د صبا زیرے دے اوُ نن جنت جنت دے
په ټول وطن ښادئ ټول وطن جنت جنت دے
خو بیا هم چغې اورم چه ډوډئ ډوډئ

اِنسان سپوږمئ کړه لاندے د تدبیر د قدمونو
ممکن شو هغه ستورے رانیول هم په لاسونو
قابض شو ممکنات د ناممکن په قسمتونو
اِنسان جوړ ډول زده کړل د اِنسان د تقدیرونو
خو بیا هم چغې اورم چه ډوډئ ډوډئ

سندرے دی دا دور د انسان د اِرتقاء دے
دا وخت دے د روان په لور روان د اِرتقاء دے
زوان دے چه منزل ته ځی کاروان د اِرتقاء دے
زوال ئے دے بے نښه دا جهان د اِرتقاء دے
خو بیا هم چغې اورم چه ډوډئ ډوډئ

علمونه شو په هره لار بل کړی مشالونه
فن د د مره رنړا اوکړه چه لوګے شو بې فکرونه
خبرے کړی دُنیا سره ګرځے اوُ مشتدرونه
بربنبیږی ورته سترګے مرمرین شو جمالونه
خو بیا هم چغې اورم چه ډوډئ ډوډئ

اخبار اؤ رسالے دی ننداری د ګلشنو نو
ریډیو اؤ ټیلی وژن کړی خبرے د عیشونو
باران دے د انسان د خوشحالئ د الهامونو
وطن یوه منډئ ده د عشرت د کتابونو
خو بیا هم چغے اؤرم چه ډوډئ ډوډئ

دانش چه یؤ جوهر وو د یؤ مدح په قیمت شو
قلم چه یؤ تقدیر وو نو محتاجه د دولت شو
دا زړبه چه یؤ توره وه پسته شوه اؤ سره شوه
شاعر چه یؤ نظر وو ړوند د زر د نه طاقت شو
خو بیا هم چغے اؤرم چه ډوډئ ډوډئ

راځئ چه دغه چغه یوه سوے غرغنډه کړو
راځئ چه دغه خپلے ګرمے وینے ورسره کړو
دا روړ جهان ورانیږی که جوړیږی خو ملګرو!
ترهغه چه دا چغه په دے خپل وطن مړه کړو

ترکومے چه دا آؤرو چه ډوډئ ډوډئ

---

# دستور

د یحییٰ خان د مارشل لا، خاموشۍ چه په سیاست خوره شوه ما دا نظم (دستور) اودیکلو نه مخکې
چاپ کړو !

---

زهٔ تصوّر د خپل سپیره جهان صحرا ته بوتلم
اوُ دَ خټهٔ دُ نو غنوکانړد سره او لوبیدم
زما ژوندون دَ تیندکونو اوُ خړپو سو بلد
که په هر خنډ و خار پریوتے یم خو نه خوږیدم

په لیونی خیال چه هر څهٔ تیریدهٔ سَنهٔ تیریدهٔ
دَ چاپاړدونو به ټکا ؤنهٔ خوړو ټلهٔ تیریدهٔ
کله به مستے هوا او چیړلم کښے به نستم
غلے ودم چپ ودمه که هر څهٔ وو په زړهٔ تیریدهٔ

چه چرته غږ به په مرغو کښے د سپرلی شو
زما احساس به څهٔ بوکه بوکه اُزغی اَزغی شو
زما ویرجنه دُنیاگۍ زما سپیره دُنیاگۍ
هر یوُ مراد را ته تقصیر دَ خپل سپیڅلندی شو

مازیگرے نظر یوړ د شفق غیږے له
که چرته خوږ زړولن زړگی ته څهٔ آرام تر را وړی
د دوار دستړے پیچے آخر سلګئ شوے
زهٔ چه ئے کوم پله لیږم ژړا انجام به تر را وړی

خومره سوز دنه راغونده شوی په تکل کښې زما
خومره اَزغي اَزغي اَزغي دي په منزل کښې زما
سترے ستوما نه شوم ویښ مے شه اُودهٔ زړګیه!
خو وخت سکونده لم شوګیرے وے په اَزل کښې زما

ویښ مے څه اوس به په ستورو باندې غم غلط کړم
بره مے اوکتل خو ستوري څهٔ حیران حیران دي
نهٔ هغه منډے هغه ترړے هغه ځوند دو پکښې
ټول دیوښ نه څهٔ خفه خفه پریشان دي

ویښ مے اے ستورو چا ژوندون ته سترګے نیسي
دلیونو ژوندون خو تل دلیونو ژوندون وي
تاسو خو ځیے لوبے تیوے اُو موجونه کوئ
خبر دے زما که ترا ابده دستګو ژوندون وي

دا تاسو وے د دستورنه بغاوت کړے دے
شپه خو هغهٔ ده لا د ستورے بدل کړے نهٔ دے
پاسئ هم هغسے د مینے پټ پټو نړی اوکړئ
تیارهٔ هغه ده خپل غرورے بدل کړے نهٔ دے

زما د غم اوُ د دے تورے شپے په خاطر
لږ زما د پرده هر ونو سره لوبے اوکړئ
حسینو ستورو: د دے لوئے عظیم آسمان ستورو.

# چه دا به څوک وي؟

چه حق ګوئي ئې د ه پېشه ګوي د ننګ خبره
چه ګوي پاکې د خوشحال خټک په ژبه ننګ خبره
چه په يوه ژبه دې تېنګ چه ئې مضبوط دې ايمان
چه ورته تپوس مسخره دې د ا ور ننګ خبره
هغه تدغن چه به د ځانه چونړ وسېتل کفر دو
ده به په دار کوي کولې تل د ننګ خبره
هغه وختونه چه تلي وې غرغرې دې د لمر
پکښې يو دې دو چه ئې کړې د پښتنګ خبره
هغه خدائي چه ئې بنديان نمېړ ... په وګونګ
هېڅرته نه وې نه د سيرنه د پارښتنګ خبره
لکه منصور تپه د حق کوي په دار سبکاري

څوک دې هغه دې چه باغي دې د غېرت په چغه
هغه مېړه دې چه بد نام دې د ملت په چغه
څوک دې هغه دې چه ئې سرچاته تېښت کړې نه دې
هغه پښتون دې چه دې غل د قوميت په چغه
څوک دې هغه دې چه ئې بُت ته سجده نه ده کړې
هغه زړګې دې چه کافر دې د وحدت په چغه
څوک دې هغه دې چه نظر دې د پښتو د سترګو
هغه مجنون دې چه سنګسار دې تش د بيت په چغه

ښوک دے هغه دے چه د هر غاصب غند نه کوی
هغه زلے دے چه بد نام شود غربت په چغه
چه دَ اَنا په نوک غکیږی هغه ثار ښکاری

چه د خپل ذهن د سرو وینو نه سپرلے جوړوی
چه د زړګی د خړپکو مستے ترانے جوړی وی
چه د و ختونو په هورونو کښے ګلونه کوری
چه اَسویلی راغونډ وی ترنیه وګے جوړ وی
چه دَ چا اوښکو نه نظر اَخلی رِند وستر ګو ته
چه د چا سرو ملالو سترګو نه پیالے جوړ وی
چه لیونی ئے تل بے سره اوُبے وا که ګنړی
چه د خپل عقل نه خپلوا که لیو نے جوړ وی
چه فضا کانے ئے اَثر د لیونتوب ا َخلی
د زړهٔ ذرزانه چه د سوی زړوند نغمے جوړ دی
چه دا به ښوک وی لیونے غوندے فنکار ښکاری

یوٌ آئینه ده دَ تهذیب اوُ ثقافت دَ پښتون
یوٌ پیمانه ده د سرو وینو دَ غیرت دَ پښتون
یوٌ هنګامه ده په دنیا کښے دَ جرأت دَ پښتون
یوه مستی ده زلمیتوب دے بس دَ پت دَ پښتون
یوٌ تماشه ده د خوشحال د میړتوب نخښه ده
یوه حباره خلنده دَ شرافت دَ پښتون

سوده وفا ده، سوده ننګ سوده ژوند دے
والله! تعبیر دے هم تقدیر ده هم همت د پښتون
جذبه جذبه ده توره توره ده قام قلم دے
تاج دے ننګ ده ئوم ناموس ده هم غیرت د پښتون
داغ دار روستر ګوته دا روڼه آئین داغ دار ښکاري

هغه زلے دے چه وئیل به ئے وهلے مے شے
خو ګوره څوک یمه پښتون یم ورکیدے نه شمه
هغه منصور دے چه وئیل به ئے ترلے مے شے
خو ستا د دار او د رسونه ویریدے نه شمه
هغه غیرت دے چه وئیل به ئے وژلے مے شے
خو ګوره زه د خوشحال هوئے یم تښتیدے نه شمه
هغه صادق دے چه وئیل به ئے شړلے مے شے
خو زه ملنګ له دے کوڅے نه صبریدے نه شمه
هغه دے! دے چه به ئے وے ستر ګے ترلے مے شے
خو ګمان مه کړه دا سے نه یم ړندیدے نه شمه
څوک دے والله! د افلاطون نه هم هوښیار ښکاري

هغه د زړه په پرهرونو کښے موسکے زلے
هغه یو ګړیکه د وطن د شهیدانو وینه
هغه لالا خپلو داغونو کښے زلے زلے
هغه فریاد د چارسدے د ماشومانو وینه

هغه د زړه د درد یو خوږ یې لیونی زلمی
هغه د ننګ روح په تکړتوب د زلمیانو وینه
هغه په سترګو کښې د هر څه اصب ازغ زلمی
هغه یو څیڅ د مظلومو انسانانو وینه
هغه د قام په نامه تل ذرې ذرې زلمی
هغه د کونډو او د رنډو او خوارانو وینه
ما ته خو خدای ښکو چې رهبر ښکاری هم لار ښکاری

هغه د چا پیغله د بل غوجل کښې نه شی لیدې
هغه د دې معاشرې اول غندنه کړې
هغه د چا د کونډې غور او ربل ته نه شی کتې
هغه د خپل تهذیب د خپل اسلام غوښتنه کړې
هغه د چا ناوې بربنډې سترې نه شو لیدې
هغه د دې حیا د دې پردې پالنه کړې
هغه د چا د خور پوړنۍ لاسونه نه شو لیدې
هغه د داسې آزادۍ څخه پوښتنه کړې
هغه د چا تورسرې بې لوپټې نه شی لیدې
هغه هر چا ته د دې رونړ سحر بخښنه کړې
څومره ګرګجن دې چې باغی له دې بهار ښکاری

هغه ساقی ته وائی مه ګرځوه تش جامونه
ما ته د چا د اوښکو ډکې سترګې هیرې نه دی

مطرب ته وائی نن هم مونږ سوروه خپل تارونه

دَ چاسټئ لا په فضا کښې ګرځي تيرې نن دي

په هغهٔ نهٔ لګی د چا دږ مې شرنګ سازونه

څو به تازه وی د دوړنګو پسرلو ګلونه

یوه غمژنه شان خبره ده څهٔ ډیرے نهٔ دی

فریبه ستا خبرے څهٔ دی خو لاګیرے نهٔ دی

هغهٔ زغم شی تیروے شی په زړهٔ دردونه

دَ چا نافسند ے نادیده کانې ترے هیرے نهٔ دی..

دننګ شغله دژوند په وران ویجاړ مزار سبکاری

یره چه څوک دے چه پښتون کښې پښتو کښې

کله باغی شی، شی له سوزه د کوچی سندره

یره چه څوک دے چه زمونږ د تهذیب په خاطر

دغیرت چغه شی، شی مسته دَ زلمی سندره

یره چه څوک دے چه زمونږ کور ته حیا را وړی

لکه منصور وائی په دار د روایتی سندره

یره چه څوک دے چه پښتون اداس له زړه کښې

لکه مجنون په هر ډګر وائی ملی سندره

یره چه څوک دے چه دهر مردِ آهن د لاسه

وائی په قید وبند کښې هم لکه غازی سندره

دَ زولنو په شړنګیدو کښې موسیقار سبکاری

---

# ډولۍ

د منزل ستړو ستومانو — د مرام د کور خلمبانو!
د ژوند ون لیچنو سترګو — اے د مینې رنځورانو!
غرسنو د صحراګانو — اے ښکار شوو د ښکاریانو
د تقدیر سپېرو مړیونو — اے شتمنو یتیمانو!

دا سازونه چه غږیږی — دا فضا چه په ګډا ده
دا چه مونږ پله راز غلی — آخر دا د ډولۍ د چا ده
جوړې زمونږ دکو ښائست دے — جوړې زمونږ د کور ژړا ده

دا سازونه خنک خوا ږه دی — د خپل سوز په لمبه کیږی
یو سکون په راز ګیږی — چه په غمونو کښے ګرځیږی
سره شالونه تر هوا وړی — پسرلی د ورته خندیږی.
په آسمان د بودۍ تال دے — که سهرے پرے راغوړیږی

تماشه ده تماشه ده — بے پنا غونډے برېښنا ده
جوړې زمونږ دکو ښائست دے — جوړې زمونږ د کور ژړا ده

د جلات د پیلار خامنو!
دا هم هغه محبوبا ده

---

# زیړے

اے دبابړے اوٗ د تک سور اشنغر بادہ!
پہ وینو اولامبہ ورډوب شہ دَ تهکر بادہ!
پہ اسانو زړہ بورجلو دمہ پښتو خواہ
اوګرځہ وښہ اوٗ راتاوٗ شہ پہ هر دَربادہ!
دَ خپل وطن د هر شهید پہ هر یوٗ قطرہ ورشہ
ورشہ اوٗ اوګرځہ پہ ښار د پېښور بادہ!
بی دِ هغه دکراکړہ اوٗ داتیلم پہ خوګو
تاوٗ شہ راځہ پہ اود دیګرام اوٗ پہ قمبر بادہ!
راشہ بیارا شہ اوٗ راوالوزہ پہ مارا شہ
دَ رانریزو د ملاکنډ دغرہ پہ سربادہ!
د ټول وطن پہ هریوکا ترې بوټي پریوزہ پاسہ
ورځہ پہ هسکہ لوړہ څوکہ د خیبر بادہ!
دیوٗ ننګیال پښتون ملنګ پہ نامہ، یوٗ امانت درکوٗم
هغہ ملنګ چہ پہ پښتو کښے ئے پوښتنې ماتے کړے
خو دا وطن ئے تر قیامتہ لہ فرنګ کړو آزاد
هغہ ملنګ چہ هریوٗ ظلم تہ درغا پړه وَ تو
لکہ خوشحال ئے هر پښتون د هر ادرنګ کړو آزاد
هغہ ملنګ چہ ئے د ننګ پہ رنګ جامے سرے کړے
خپل عزیز قام ئے پہ سبق د نام و ننګ کړو آزاد
هغہ ملنګ چہ د انګریز ډنډ ئے ماتے کړلے
اوٗ خپل اوٗلس ئے دَ تیرے تورے پہ جنګ کړو آزاد

هغه ملنګ چه زړونو سره ئې لوبې اوکړې
او خپل ملت ئې د زړونو پېرو په شرنګ کړو آزاد
هغه ملنګ چه د اولس کشتئ ئې پورې ونیسته
نکه مانړکے ئې خپل ټپولے د هرغورزنګ کړو آزاد

د هغه لوئې عظیم ملنګ په نامه. یو امانت درکوم

باده! ورکو زرشه د خیبرنه او تپوس ئې اوکړه
هغه ملنګ د دب به دخپل قام په فکرونو کښې وی
په یو آباد جلال آباد کښې یو جونګړه ښکاری
هغه ملنګ به هلته هم غرق په غمونو کښې وی
ورشه جونګړے ته ئې ورشه او سلام پرې اوکه
کوچه مشغول به دخپل خوږ زړۀ پرهرونو کښې وی
کټ مصله کوزه کنټرول به وی او صرف هغه
تنها به ناست وی چرته ورکښه په وختونو کښې وی
جوړه جامے به ئې دی زوړ رنډے د سر د پاسه
هغه به ناست وی سر به ئې اېښے زنګونو نو کښې وی
دغه ئې مخښې دی سلام ورکه پیغام ورکه
وایه خاموش تیولے تل وطن په زړونو کښې وی

د هغه شاه سرتور ملنګ په نامه. یو امانت درکوم

وایه بابا! ستا د وطن یو زانړیږی زلمی
ستا په نامه بانده یو هسے امانت راکړے
سر د زنګون نه لږ راپورته کړه او ساه واخله
وایه ستا زړۀ له ئې تکور تالۀ ئې راحت راکړے
لږ د غیرتقام له فکرو ستړو د غږو وړه
داهم ستا ښپې د زړۀ بړی مشقت راکړے

دَ قام خوږمنه اے دَ قام په غم غمژنه بابا!
دائے هم ستا د خوارو خسکو یو قیمت راکړے
هغه چه ستا دَ قام په هره کوڅه وینے توئے شوے
دائے هم هغه د وطن عظیم دولت راکړے
اے په کولو دَ الزامونو چاڼو چاڼو شوی بابا!
ستا د عظیم حوصلے برکت راکړے
د هغے شاه بابا ملنګ په نامه. یو امانت د دکوم
هغه یو شپه چه یو طوفان دو بوګنېدل ترے خلق
خو د پکښے بیا زمونږ د دینو بارانونه مات شو
هغه یو شپه چه پکښے سترګے وے د قام ړندے
هغه دَ ظلم تیرے تورے غرونه مات شو
هغه یو شپه چه پکښے زړونه درزېدل دَ اولس
هغه دَ هر یو ړنده مار د سرو زړونه مات شو
هغه یو شپه چه په مرګی وه دژوندون خپسه
هغه نښے اوَ کاواک توب هغه ستنونه مات شو
هغه یو شپه چه قتلِ عام وو دَ ذهنونو پکښے
هغه سینے چه پرے دَ ظلم سنګینونه مات شو
دلته کښېږے ترقی په آخری جشن کښے
یاران پښېمانه شو چنګ ونګ شو اولونه مات شو
هغه شپه اوشلېده یو زیرے د سحر راغے
اوپه ړندو سترګو کښے لږ شانِ نظر راغے
د هغے خوښی په ننګ ملنګ په نامه. دا امانت یوسه

---

# اے قلم کارو! واورئ

لکه لاله په سور خمار رګې ږدې داغ شوې نظر
په وینو سور شهید بې ګورو بې کفنه پروت دے
لکه د ګل موسکے موسکے حلاله شوے ځواني
ریزه ریزه دے پاڼے پاڼے بے چمنه پروت دے

---

د چا نظر دے چه ترے نم څاڅي باران ترے څاڅي
د چا نظر دے چه ترے ژوند څاڅي ارمان ترے څاڅي
د چا نظر دے چه غرور د زمانے ته ګوري
د چا نظر دے چه سر د ټیټ په جهان ترے څاڅي

---

اے د انسان عقیدت مندو قلم کارو واورئ
داد سپوږمئ د فاتحانو د عروج زمانه
اے د لمبو راغونډوونکو فنکارانو واورئ
داد هوس د انسانانو د عروج زمانه

زمانه ده خودغه ستړګې هم لوستل غواړي
هغه هم سترګې د انسان دي پرانستل غواړي
هغه هم د لته څه لیدل غواړي کتل غواړي
هغه هم ادرنګوی داسې څه ویئل غواړي

---

هغه که چپ وي اوهیڅ نه وائي ویئلې نه شي
قلم ته لاس کړي ترجمه ئې زمانې ته اوکړي
د خاموشۍ! اوبه ولاړې د روان سمندر
لرزشان نظر دې تنده غرې افسانې ته اوکړي

---

ګني په خپله که ګویا شوې د غضب په ژبه
په دې نړۍ به یوبې کړکې شان عذاب راشي
د آدم پو نسبت ته به حاجت د اسرافیل د شپیلۍ
رانه شي داسې به قیامت د انقلاب راشي

---

# اختر

زهٔ لا یو غلام یمه اختره په ما مهٔ راځه
نهٔ شم لا خندلے دَ زړهٔ سره په ما مهٔ راځه

تا سره لا نشته دے پیغام د خوشحالئ زمونږ
شپه ده لا زمونږ هٔ بے سحره په ما مهٔ راځه
ګورے چه مے سترګو کښے د اوښکو په ځائے وینے دی
وینے چه پابندے لا نغے زما د مینے دی
ګورے چه سینے ته مے نیغ شوی سنګینونه دی
وینے چه پرانته مے لا سو پښو کښے زنځیرونه دی
ګورے چه په اور کښے د حالاتو مے شعور سوزی
وینے چه هر فکرے د ظلم په تنور سوزی

اے زما د حاله ناخبره په ما مهٔ راځه
ځهٔ د خوشتانو بختوره په ما مهٔ راځه

وینئ چه کربوان راته وحشت نار په تار کړے دے
ګورے چه آزادے چا پنجره کښے حصار کړے دے
وینئ چه ژوندون مې د ترهٔ خو زهر ډکوټ شوے دے
ګورے چه سامان د ژوندګۍ رانه لوټ شوے دے
وینئ چه په شونډو مې پړونه دی سنګۍ خورمه
ګورے چه خپیرے مې په مخ د ژوندګۍ خورمه
وینئ چه زخمونه مې په زړهٔ لاغریونیولی دی
ګورے چه مې شونډے لمبه شوی ترسکیدلی دی

ګیله مې ده اوس هم لا نیره په ما مهٔ راځه!
خه خه! بے احساسه بے نظره په ما مهٔ راځه!
زهٔ لا یو غلام یمه غلام ته دا ختر څهٔ حق!
سن په خوشحالو کښے ګرېدل دیو نهر څهٔ حق!
زهٔ لا انسان نهٔ یم نهٔ تهذیب نهٔ رواج پیژنم
دده اونهٔ دستور د سرمانے د سماج پیژنم
زهٔ لا یو رنځورنه یو بیمار ینه لا په خان یمه
جل وهلے ګل د جل وهلی ګلستان یمه
زهٔ لا خایه ویه په خپل غم کښے خوشحالی نهٔ شم
زهٔ لا اوس کولے دهیچا سره سیالی نهٔ شم

ورشه دچا غټ محل ته بره په ما مهٔ راځه!
ورک شه د تضاد و پیغام بره په ما مهٔ راځه!

زۀ لا په قید د نو په بند د نو کښې ژړند د ن کوم
زۀ لا ګذاره په زکوٰتو نو د قارون کوم
نشته لا زما سترګو کښې تاب د نظر نشته دے
نشته لا زما په شور و شر کښې اثر نشته دے
زۀ لا د نیستۍ په خاورو ختو کښې ګکړیمه
زۀ لا په میدان د سربازۍ کښې خدائیګو مړیمه
زۀ لا د جونګړو په تیرو کښې د ترا نۀ لرم
زۀ لا د زړګی په لاله زار کښې خندا نۀ لرم
زۀ په سپیرۀ کور کښې فرښتې د رحمت نۀ لرم
نستې خاپیرۍ خوا کښې د خوار محبت نۀ لرم
کوم هغه دلیل دے آخر زۀ چه پرے یقین اوکړم
زړۀ ته دے اختره اخۀ خبره د تسکین اوکړم
ما دِ دَ کړګجنو خوشحالو نه باغی اوګڼړه
ما دِ دَ سازونو د نغمو نه باغی اوګڼړه

پوهه شوے کنه په دے خبره په ما مۀ راځه!
زۀ معتبر نۀ یم معتبره په ما مۀ راځه!
زۀ لا دَ منکرو د زنځیر شنړیدۀ آذرمه
زۀ لا د قیدیانو د زړګو درزیدۀ آذرمه
آذرم د زلیانو د جذبو شنړیدۀ آذرمه
آذرمه خندا د چا! د چې ژړیدۀ آذرمه
خنکه په دے حل کښې راځه مانۀ خوشحالی راوړے
وے د کډو نو په نوم سترګو ته آزغی راوړے

زهٔ دَ غریوه ړک یم تهٔ وائے تهٔ به خوشحالی کوے
یه اخترهٔ! دا دچا دپاره دلالی کوے
څهٔ چه زمونږ نهٔ ئے خپلو خلقو سره غاړه شه
مونږه عبث مهٔ تنګوه خو نه دِلتا ړه شه
ستا د بادارانو او زمونږ هکلی نهٔ کیږی
دداړه غاړے مهٔ وهه بس نهٔ کیږی بښٔ کیږی
مونږ چه کله ستا د بادارانو نه ځان اوګټو
مونږ چه دخپل ژوند د محبت ګلستان اوګټو
تا به هم آزاد کړو ترے بیا هله به اخترشے تهٔ
اوګوره بیا خپل قدر چه کوم غریب له ورشے تهٔ
تور چه مو د سترګو او شوخی مو دنظر شے تهٔ
هر زړهٔ به دِ کورشی او د هر چا به دلبر شے تهٔ

بیا کهٔ راځے راشه اوس خوځهٔ درکیږه مهٔ راځه!
مهٔ چیړه مونږ څهٔ په مځکنے ځهٔ تیریږه مهٔ راځه!

---

۷، اکتوبر ۹۷۵، د اخترشپه

# زما شهید

خورځیږي به خړې صحراګانو او دښتونو شي
مینه او ښانښت راته د خاورو په ګودرونو شي
برق د زنداګانو به د شګو د نګمرونو شي
غوړې د ګرګوړو او د نختړو په ښاخونو شي
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه دړم
یو خو د ښاښت ئې د پتګوبل خوا د ځنړ د شي
حُسن د تارتا رلو بیتو تار تار ګریوانونو شي
راشي به یو وخت به زلمیتوب او پیغلتوب بهار
نور شي د هجرو مستئ د ورانو ګودرونو شي
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه دړم
ګړګړ شي هرخوا ته د دینې وینې کربلا وطن
شور د خندا که نوشي په دې ژړ ژړا وطن
تنده د بیلتون سره سره شي د دیدن په جام
موږه د دوزخیانو ته جنت جنت شي دا وطن
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه دړم
مات به خپلولا سوچه د ظلم زنځیرونه کړم
وران د نرنوني نظام د تهر زندانونه کړم
بیا شي د خوږ ژوند د انساني مینې ګاونډونه آباد
وران به انساني وینې جوړ شوي محلونه کړم
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه دړم

دلته دا بې ږغه خاموشي به اتڼونه شي
غړیونیولې ژبه کښې د ریښتې کریکې سازونه شي
سره ګلاب دا وچو شانې شونډو دا وچ پاړونه شي
تهیټ بانړه د سترګو د پښتون غرور تیږونه شي
زه به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه ډُړم

خلاصه شي د ظلم د فتنې نه د ژوندون مری
نوره خفه نه شي په وحشت کښې د قانون مری
ماته شي ترټمره د غاصب او د قارون مری
هسکه شي د ګټې په میدان کښې د پښتون مری
زه به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه ډُړم

شپه چه په شا دا نړوي مستي او ګړي خندان سحر
اوګړي په دې د ښتنه ے د سرو ګلوباران سحر
هغه د خود دارو شهیدانو د ارمان سحر
سور سورې په ټوله نړۍ خور کړي د انسان سحر
زه به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه ډُړم

پاکه شي د هر داغه د رونړ انسانیت لمن
سپورې شي د هر سر د حیا او شرافت لمن
ډکه شي په ګلو د هستۍ او حیثیت لمن
خلاصه شي د ظلم د ازغونه د غربت لمن
زه به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه ډُړم

دا ئے دینګو چې هیڅوک هیچاته پسخیږی نه
دا ئے خوږ ژوندون چې هیڅوک هیچاته زیریږی نه
نهٔ غواړم چې یو ذلوږے مری اؤبل مړیږی نه
ټول انسانیت چې یو وجود شی جوړاکیږی نه
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه وړم

هغه د شهید وینے دا ئے مشالونه شی
مونږ چې پرخپل هغه ز ماضی کتب لوستلے شو
مونږ د خپل ادب په چمن هغه پاکه وینه بیا
سورسپرلے کولے شو یو سره نغمه کولے شو
زهٔ به خپل شهید له د هغې بهار ګلونه وړم

---

## داغ داغ لمن

ما وے چې دکه به کړم نن د ګلو سرونه لمن
خلاصه ئے نکړه په دے لار کښے ذ ازغونه لمن
دستر کوتور کښے چې مے نغارے لیبونځے تلوسے
خنګه به یې کړم اوس داغ دګنید ونه لمن

اوړې بلبلې د شعور په وطن
دائم زه اوسمه د نور په وطن
منکرو! ښکله سترګې او غوږ دُم
د چا د سترګو د غرور په وطن
د سرمائے د خو دیوانو راج دے
د صد د راسے د مزدور په وطن
حق ته ګناه ، ناحق ته وائی ثواب
د مُلا راج دے د منصور په وطن
په ژبه ګونګ په سترګو ړوند ګرځمه
نګه غل اوسم د جمهور په وطن
هر يو دهقان ، هر يو مزدور م موسیٰ
لرمه هر غر کوهِ طور په وطن
چه خوارې کښې ترلاندِ ساه واخلي
جوړ دُم نه سے سیورے ګور په وطن
لرے به نهٔ وی چه لار جوړه کړمه
د خپل آئين د خپل منشور په وطن
نظم دلور اؤ د ستړک ښواړمه
دا ګناه دائے قصور په وطن
که څوک پرِمرې که څوک پرِچوې منکرو!
کوؤ به دا زیرے ضرور په وطن

ستا په سترګو د خمارېدونو اور
بل شو په ګُلونو دَ ګُلونو اور
به ساقي! دې شونډو [illegible] اوګوره
لږ ئې تر خدائيګو په ځاموتو اور
داد دروغ د ځادى چه سپيره يُو مونږ
پورې چه کړو څښې په تقدير د نو اور
ستا د انکار د نو په اور سوې يم
بل نه کړې ضربه د اقرار د نو اور
شيخه زَ د بدن د ګناه ترږې يم
پورې د شي ستا په ثوابونو اور
يوڅ شو په سترګو کښې د سترګو تور
نه د مرى اوس تل د تهمتونو اور

ستا زَ خوبونو سترګو زاره شمه
پورې ئې کړو ماله په خوبونو اور

# پيغام

مات کړى چه مونږ کو پرده د رنګ او د فرنګ دو
راځئ هغه زړه پښتو مو بيرته را تازه کړو
رنګ د رکړو د غيرت دې سر شوې نغارې ته
د ژوند د ناوې شونډې سرې د وينو په غازه کړو

# تپوس

د ستا ښائسته وطن چه ورته نور خلق زیږي
دستا جنت وطن چه پسرلی ورته پیغیږي
دستا د وطن خاوړے چه ترِ سرۀ زر پیدا کیږي
دستا د وطن کانړي چه لعلونه ترِ شرمیږي
دستا د وطن غرونه چه سیندونه ترِ زنګیږي
دستا د غرونو ډډے چه مانړۍ ترِ آبادیږي
دستا د کور سیندونه چه بجلیانے ترِ جوړیږي
دستا د کور اوبۀ چه ترِ دښتونه سیرابیږي
دستا د وطن بوټي په میوو چه راماتیږي
د خدائے ټول نعمتونه ستا په کور کښے پیدا کیږي
نو بیا د دے جنت وطن بچي ولے نهر دي
د اوچ سکرک د لاسه در په در خاوړے په سر دي

دستا په ګل وطن کښے چه د خدائے هر یو نعمت شته
دستا په کټه لوټه کښے دولت شته
دستا په بیدیاګانو کښے هم نخښے د جنت شته
دستا په کانړو بوټو ډنو غنو کښے لذت شته
دستا په بوډاګانو کښے د ښے ځوانۍ همت شته
دستا په تلوسو کښے یو مستي د حرکت شته

د ستا سر کښې دماغ شته او په مټو کښې طاقت شته
په تا کښې ګرمه وینه شته جرأت شته او غیرت شته
همستی لوی ښکر دې د بې کچه قومیت شته
نظر لرې وزرې دې د ښکر د الوت شته

ن

بې ولې ته چه درخ آ ذړی خواریږې رنځوریږې
هر قام په بره خیژی ته په ښکته دار غږیږې

خوارى کوې خوارى کښې مزدورى کوې مزدور کاره ئې
په غم کښې د روزئ روان په هره یوه لار ئې
هر زخم ته هر مشکل ته هرې سختئ ته تیار ئې
د زګره ئې ټول روزګاره ئې ټول روزګاره ئې ټول روزګاره ئې
هر زړه چاؤدون دې زړه دې په هر ختنه نترار ئې
په هر څه کښې هنر لرې د هر څه هوښیار ئې
په خراؤکړنت نه ئې بې مشین ئې یوښتار ئې
هر غم ته غاړه ږدې هرې پیښې ته بیدار ئې
دا ټول خو منه خورې بیا هم بخیله په خان بار ئې
په شته مال کښې سوالګر ئې په شته وطن کښې خوار ئې
دا ولې داسې کیږي آخر دا خو هم یو سوال دے
چه ستا او ورخ خولې څخوت هم دَله زوال دے

دا صرف نتیجه زمونږ د یو لفظ نفاق ده
دا نه ګورې ښتون چه ټول تپوښې پاره پاره دے

زور ور سره دښمن عزیز عزیز سره دښمن دے
که کور دے او که کلے دے که ښار ذره ذره دے
کوم پرے د چا نه راځي چه دا هم کښي قام دے
د قام په حیثیت خویو بد بخته دے سپیره دے
قامونه په یو والي ترقي کړي مضبوطیږي
پښتون تالا والا د خپل قسمت په ننداره دے
یو هلته او بل دلته هرڅوک ځان له ژاړي
چه واے اسرے ویر د چا د رحم په آسره دے
تمام د نفاق ختم شي شي کیدے به د ژړا نه
بس لږ شرم په کار دے د قامونو د خندا نه

زمونږ د دښمنۍ او تربګنۍ په نتیجه کښې
زمونږ د بچو رزق دے د بل په خزانه کښې
زلی مونږه پیدا کړو او ځواني بل تالولو کړي
بد خواښي مو زل شولے د بل په کارخانه کښې
سیند ونه دي زمونږه د غرو کانے بل ته ورکړي
مونږ ناست یکه ړانده یو پټے سترګے په تیاره کښې
په نوم غرونه زمونږ دي زر تر نور خلق او باسي
مونږ تل د لوږه لغړیو په شته منه خپل خانه کښې
ځوان زه پیدا دار تپول زما د خاورے او د غرونو
د غرخنه کارخانه به دي د بل په ښاریه کښې
زما په نعمتونو به تل نور خلق خوریږي
زما بچے به زهر ښکي د تریخ ژوند په پیاله کښې

یوځوئ د پارهٔ د بل خوئے حلالول دی
د قصاب نظام ته اوګورئ یوقام په بل خوړل دی

راځئ چه د دے خپل موذی مرض علاج اول کړو
بیا د د سرپیتوب د شمن قاتل نظام بدل کړو
پرے جنبے پښتون د ردرد و لخ په تار غنچه کړو
رونق ئے د یوقام په نوم د مینے په منګل کړو
چترال نه تربولانه خلهٔ یوه خبره یو کړو
د خپل راتلونکی نسل په خاطر دغه عمل کړو
په دے زمکه د دے زمکے بچی ته جنت جوړ کړو
سره د تربګنو لاسونه سنګل د یو ازبل کړو
چه نور پښتون د بل د کار رخانے خوراک نه شی
پخپله زمکه خپل زلے پخپلو سپرلو ګل کړو
چه نور رانه په رزق پسے څوک مسافر نه شی
راځئ چه غارے ورکړو بے د سوچه یو توکل کړو
په دے عمل قسم دے چه ژوندی پاتے کیدے شو
که یو نه شو ډوب یو ډوب به یو ډوب پانے لیدے شو

رنښه بچې ناز و ادا ګانے اؤ نخرے زده که
زه به ورته ساز ږدو ږدو نڅوم ته را ته ګوره شه

داسے نه پاے د غمے قدم داخله
داړه وه په سترګو کښے دا ټوله دنیا داړه وه
شابه بچے شابه دے سازونو ته راننوځه
وډره بچے وډره بچے زړغے په شا داړه وه
د غمے اے د غمے د غم په لمره هسکه کړه
تور د ډړ دے سترګو به دے سپینو کښے بیا داړه ډه
پیچے غوړ زده خو د ښرو د ښرنه ځښځنے نه
شان په کښه بد د ګڼے په چورنګ به ملا د پړوه
شابے م، د غمے سبق شه پښے حل زده که
لو بده اؤ تپه زده که سنده ره اؤ غزل زده که

لار د پښلا دره شه هن شابه په شا لاړه شه
راشه په ټول رنښه چورنګونه خوره پیرونه خوره
مړے دکه دا سترګے کے پید پښے نشے نشے
اوخنکوه عشق چه ونه خوره تپونه خوره
ګوڅک انګی دسیرف ځښځنے پښے جوړے که
خانده د هونښیارو عقل به زده نه عقلونه خوره

ږده به که دنیا د نرمو شونډو خمار دو ننو کښې
زړه چه چاته ورنه کړې په هره ته د زړونو خوږه
زن زده که ننګاره شه هم زده که هوښیاره شه
زه به دِ نو کرشمه بچې خوته زر دارکه شه

چل د حیا مه زده کوه تل حیا ښه په کار
نه به چل په ستر کو کښې کوې نه به پیسه اخلې
نه به بس ګنهګیرې نه به حق د عزت نه لرې
نوټ به د ځان جوړ که هر څه کوې په خپله اخلې
ما ډیر اُمیدونه بس په تا پورې تړلي دي
زه چه پرې خوارېږم بچې داسې لار به نه اخلې
ستا حُسن زما د خوار قسمت د تورو شپو چراغ
زړه به چاته نه ورکې د هر چا نه به زړه اخلې
تا ته که هر څوک پیغور کوي چه د آزادۍ لورې
دوی به دی پاینده بچې ته اصل کښې د مې لورې

د فن ته به بچې فنکاره نه یې نه به د مه یې
دلته کښې د قدردانه توب نشته د فن قدر
تا ته به که هر څوک هم د قدر په نظر ګوري
دا به د فن نه دي، وې به ستا د ګُلبدن قدر
ګډه شه په هر ډمه د فن تقاضې قتل که
فن که صبا مړ دی، مړ دِ دی اوکه د فن قدر

تهٔ به د احساس ملکه نهٔ ئې د هوس به ئې
نښته بچې نښته د انسان په دے دغن قدر
سترګو کښې که ستا وی د غټانو د مستئ علاج
ستا په کمیدو کښې دے زما د غریبئ علاج

---

# ډاډګیرنه

زړګے مے او وسګونیں وړلی خوږیا اوښکې په ژړنده که
مایوسه ګیږه مه پرېږدو پښتنانه یو ړنه که
دردے نیست منه سې ځ ز ګوره و رخت انسانه
د خپل احساس په د ګوهار د ګوښانه پورت که

---

# ردِّ عمل

زګوره نور به څهٔ شی خو د اغونه به ترڅو ړشی
خبرے به ترے جوړے شی بخښونه به ترجو پرشی
تهٔ خاندهٔ د موسم طبیعت ښهٔ دی او زګه بد دی
غوټئ که سیلئ څنګو وهی ګلونه به ترجو ړشی

---

# دَ انقلاب

## دَ

## شپیلئ اسرافیل

### نوټ

دا نظم ما د پښتون سټوډنټس فیډریشن د اهتمام لاندې د حسن ناصر د ورځې په مناسبت په ۵ نومبر په جلسه کښې په میونسپل کمیټۍ هال پېښور کښې اورولے وو چې کله د نیشنل عوامي پارټۍ مشران د یو ځل دپاره د اقتدار خاوندان هم شریک شوي وو۔

بیا کړې بنې د عذاب جوړې په فن د ستمګرۍ
بې زلفې د تیرو جوړې د زلو ته د نمر دی
بیا وخت د اېښې چړې د لیونتوب په رهګذر دی
بیا ستړګې غضبناکې تیرې شوې د خنجر دی
شپیلئ د انقلاب ته پو کے ورکړه اسرافیله

بیا ماتې زولنې د مړ هوس په شرنګهر دی
بیا نن ست هغه استاذي د قتل زندان په ورد دی
بیا سترګې د پښتو سرې خورو نظر نظر دی
بیا خنر وخار د لاړو ګلاب مخې جدوګر دی
شپیلئ د انقلاب ته یو کے ورکړه اسرافیله

ته چې ته ئې ملګریه! راپاسه هله زر که
ستا څپې د خرڅرته ګنغصه شه لته ورکه
باغي کړه ځوانان دَ باغيانو د سبق ګرکه
ټول ملک حسن ناصر حسن ناصر حسن ناصر که
شپېلئ دَ انقلاب ته پوکے ورکړه اسرافيله

نن هم هغه د سر سوداګري هغه بازار دے
نن هم هغه ستم دے هغه راج دے هغه ښار دے
نن هم هغه محل هغه قاضي هغه کتاب دے
نن هم هغه ټول اوږ پرانستل هغه روزګار دے
شپېلئ د انقلاب ته پوکے ورکړه اسرافيله

ډزونه رنګ زاره زمکه لاړان د وينو خواړې
بے وسه نظرونه چراغان د وينو خواړې
د الوړلو پرديو الونه بند شونه د فکرو نو
پوجړې د زلزلے خواړې طوفان د وينو خواړې
شپېلئ دا انقلاب ته پوکے ورکړه اسرافيله

ستا وينه زمونه نه شي هيڅکله سپېړے
د زمکه ستا په سر و وينو سور لاش نه شي خوړے
هډوکي د فولادو د سامراج نه شي زغملے
ته ژوندے نشي نشي ته هڅوکے نه شي وژلے
شپېلئ دَ انقلاب ته پوکے ورکړه اسرافيله

ستا هر څاڅکے د وینو په کړو وړو زړونو داغ دے
ستا ژوندون دے نړۍ په انساني فکرونو داغ دے
ستا ژوند راته بلا بیا زړین زلمی کړه لیونی کړه
ستا نوم د تورو شګو په لاله ګونو داغ دے
شپیلۍ د انقلاب ته پو کے ورکړه اسرافیله

ستا د زړه د اور نغری نن لمبه لمبه دی
خبرے ستا د فکر د ګلشن لمبه لمبه دی
جذبو د زلمو په ارادو اور لګو لے
بے وسه انسانان د ټول وطن لمبه لمبه دی
شپیلۍ د انقلاب ته پو کے ورکړه اسرافیله

ا ورکړه پو کے ورکړه چه قیامت شی اسرافیله
چه خوب د زهرو ګرټ انسانیت شی اسرافیله
د دے قاتل نظام د پاره دا فیصله اوکړه
د دے رنځ علاج په بغاوت شی اسرافیله
شپیلۍ د انقلاب ته پو کے ورکړه اسرافیله

یو داسے انقلاب چه د دے نظام قاتل شی
یو داسے بغاوت چه تر په مرګ کښے ژوند حاصل شی
یو داسے انقلاب چه بے سحر په وینو سور شی
یو داسے بغاوت چه د سامراج راج ئے قاتل شی
شپیلۍ د انقلاب ته پو کے ورکړه اسرافیله

# یارانو د جونګړو!

یارانو د جونګړه منځ دورانو د جونګړو!
جونګړو ته به ستاسو محلونه سلامي شي
اے رڼړو سرتور سرو بیمارانو د جونګړو!
د ستاسو سرتور سر ته به تاجونه سلامي شي
اے سرو اورا اورګو ځان فدایانو د جونګړو!
ښادرته د اوکوب موشالونه سلامي شي
اے ستورو و د تیرو خړو ځوانانو د جونګړو!
عظمت او سرلوړۍ ته به موغرونه سلامي شي
اے اے د لوږې لغړو ملنګانو د جونګړو!
نشان ته د غیرت به قامونه سلامي شي
اے سختو په زړه سختو مظلومانو د جونګړو!
قسم دے چه به تاسو ته ظلمونه سلامي شي

خو

دا یو لفظ تر بوره د منځه لر کړے پښتنو!
ژوندون ته د ذلت مولته ور کړے پښتنو!

---

# د بابا د فکر شمع

شي تيزې د سيلابو باړانونه د وختونو
تيږې د شي خوارۀ د شي ګردونه د وختونو
ښکاره د شي غضب غضب نيتونه د وختونو
ناکام به شي هر څو مره طوفانونه د وختونو
بلېږي به هم دا سې د بابا د فکر شمع

ړوند د ځوناجانړو نظرونه دِ تيرۀ شي
د وخت د ښوښتانو الزامونه دِ تيرۀ شي
د ځو دولت پرستو خنجرونه دِ تيرۀ شي
يو ځو زر خريد شوي قلمونه دِ تيرۀ شي
هم دا سې به بلېږي د بابا د فکر شمع

غوړ ژبي سياسيان د سازشونو دِ خبر شي
سپين پوښي رهزنان د فريبونو دِ خبر شي
غټه شوي چه په وينو وطن د مظلومانو
خامن د سرمائې د حشرتونو دِ خبر شي
هم دا سې به بلېږي د بابا د فکر شمع

زورور کړئ بنه زور ور کړئ ، سازشونوله زور ور کړئ
شورجوړ کړئ قیامت جوړ کړئ فریبونوله زور ور کړئ
دولت او خزې پاسئ تقریرونوله زور ور کړئ
ډیر تور کړئ کاغذونه قلمونوله زور ور کړئ
سلیږی به بلیږی د بابا د فکر شمع

هرخوا په دے وطن کښے موږیان دیوان خوارۀ کړئ
په دے باقی نیم شوی وطن خپل خپلوان خوارۀ کړئ
بے ب کو بے ضمیرو د پیسو یاران خوارۀ کړئ
خپل هغه زاړۀ شوی ړوکی ماړجوتیان خوارۀ کړئ
خو نه مړی ګوری نه مری د بابا د فکر شمع

زاړۀ موزاړۀ شوی دی تازه الزام پیدا کړئ
نه لیګ نه مسلم لیګ شته خاندانونے قام پیدا کړئ
لوټ مار د انسانانو ته یو بل اسلام پیدا کړئ
وچت مقام پیدا کړئ غلاته نوے دام پیدا کړئ
کم عقلو مړه به نکړئ د بابا د فکر شمع

راپاسئ بنه صلاح شئ د یو بل سره جرګه شئ
په خپل سپیرۀ انجام مو غمرازی اوکړئ خفه شئ
یا بس لږ غیرتیان شئ د غمه مړۀ شئ
که نه مرئ نو راځئ چه موږ وندی کړو پښتانه شئ
نادانو نه مری نه مری د بابا د فکر شمع

نن ستاسو د قسمت په مزار ډېرو ډیوې مړې دي
نن ستاسو د غریب د تقدیر ډېرو ډیوې مړې دي
نن ستاسو د قلم د تحریر ډېرو ډیوې مړې دي
نن ستاسو د زړه په تاج د محلونو ډیوې مړې دي
یو داچه نه مري نه مري د بابا د فکر شمع

دا وخت نه د ډنډې د بدمعاشئ نه د ځیل دل دے
دا وخت نه اوس د ستاسو د آشرنه د خوبل دے
دا وخت اوس هغه نه دے نه خُځل نه د غلو محل دے
سېرېږي کېږي و خلقو! وخت بدل دے وخت بدل دے
بلیږي به هم داسے د بابا د نظر شمع

هغه شمع چه نن نے مسلم لیګ هم پتنګان دي
هغه شمع چه نن نے په رڼا اغیار روان دي
هغه شمع چه ډېر د مخالفو خلقو مشکل کړه
هغه شمع چه تاؤ ترې د وطن ټول انسانان دي
دا شمع ده والله چه بس د نوي سحر شمع
په هر طوفان کښې بله ورې بابا د نظر شمع

---

۱۹۷۲ء

# سندره

را واخلئ بیا د انقلاب سره نښانونه ؛ پښتنو زلمو!
دا خاوره انقلاب غواړي ؛ د آزادۍ انقلاب

چه په خندا کړو د ژوندون مراد ګلونه ؛ ګلالو زلمو!
دا خاوره انقلاب غواړي ؛ د آزادۍ انقلاب

وږي خوارې د وطن په خاطر — منګرو پاسئ بېدارې پیدا کړئ
د تالاو لالا ګلشن په خاطر — منګرو! ......
د سور سپرلي ګلبدن په خاطر — منګرو! ......
شنول به غواړي زړونه او زنځیرونه ؛ لیونو زلمو!
دا خاوره انقلاب غواړي ؛ د آزادۍ انقلاب

توږئ په وطن کې د زخمیانو وینې — زلمو په تاسو باندې سوال کوي
د خوښئ ومیانه ماشومانو وینې — زلمو په ......
د دهقانو مزدورانو وینې — زلمو په ......
که خان کېږي غواړي نو او شنډ سرونه ؛ لیونو زلمو!
دا خاوره انقلاب غواړي ؛ د آزادۍ انقلاب

بڼو نوا بلاؤ! خواساره انغری — مګر رود غم څه دے داځه کېږو؟

یؤ نوا خندا بل خوا سکی خوړ که — مکه و ......

دیؤ وطن دیؤ آدم خامنو! — مکړو! .

سیزل به نغواړی دا نظام دا روا جونه لیونو زلمو؟

دا خاګره انقلاب غواړي؛ د آزادۍ انقلاب

زما وطن د سرو اؤ سپینو ډک

زه مزدور د ے بهر ګرځمه

زه یؤ پښتون خانه بدوش د و ب

ګرځه په سر اؤ در په در ګرځمه

زه په ګناه اؤ ثواب څه پوهېږم

په جنتی خاوره نهر ګرځمه

راځئ چه ورک کړو دا تضاد د غمونه؛ لیونو زلمو!

دا خاوره انقلاب غواړي؛ د آزادۍ انقلاب

---

## پوهېږم

خمار و نه د مستم په ا ننګو کښې

خو زمونږ نصیب نشته دے په څښو کښې

ستا دیدن راته د خپل وطن نظام شو

اوګې تېګ مے ساقی په زولنو کښې

ته دنیا زبېن، ته آقا — زه بدبخت، زه سپېره، زه غلام

نه منم، سته منم — د قانون، د کتاب، د انتظام

ته بې ځ، ناست نے ته مزے کوے چرچے کوے

زه خوله اوده یوکوم خو نهر گرځمه

ته شراب کباب کوے نشے او تماشے کوے

زه د تندے مرمه سوے لوے خیگر گرځمه

ته د مستئ تېږ چوے ذکر فکر د بنگلے کوے

زه خانه بدوش د وطن کره په سر گرځمه

ته د خو ختیانو سیاست کوے

زه نزدور، ته مغرور — ستا وطن، ستا گلشن، زه منګ

ته د سرما ... خو ... نو دلالی کوے

زه د دے وطن د مظلومانو ترجمان یمه

ته د فیرنگی نیچے نے خونی د ... راجی کوے

زه د مزدورانو دهقانانو ترجمان یمه

ته دهقان بازی ... محاشی کوے

زه د نیرید ونکو انسانانو ترجمان یمه

ستا ... زه ... کیږی

ستا سبکلاد سیم و زر — ... زه وحشی زه انسان

ته د دې زور پر نظام کفر تحفظ کوې
زه دغه بد نامه مشینرۍ وېجاړول غواړم
ته په دې قاتل نظام کښې ټوټې ټوټې اصلاح کوې
زه ئې بېخي د بېخه راړول او ختمول غواړم
ته د رزالت ډکو کوپړو ته نصیحت کوې
زه دغه کوپړۍ د غه سره ماتول غواړم
ته د اُولس نوم اخلې دوکه کوې
ستا نظر په خپل ذات زه د درد مشترک ترجمان

ته د هر یو محنت د خپل یو جاګیر ګڼې.
زه وایم دولت د محنت څخه سوا نه کوي
ته دغه سپېره ورځ د اُولس سپېره تقدیر ګڼې
زه وایم چې دا د خوګ دچا په وجود نه کوي
ته د جهالت نعرې آواز د خپل ضمیر ګڼې
زه وایم پېښې د ابراهیم د نمرود نه کوي
د نوې نسل، نوې تقاضې کوي
انقلاب، انقلاب نوې ژوند نوې سوز نوې ساز

راشه انقلاب، چې د تقدیر کښې بدل کړي
ژوند یوه خوږه نغمه په هر زړه کښې بیداره کړي
راشه انقلاب چې د انسان د بقا ذریعه دی
درد را مشترک کړي، یوه ژوندون لاره کړي

دا ے انقلاب چه آزادي آبادي راولي
هر انسان سبا نشت کښې نه ګڼي ډوب له خماره سري
بے له دے نه بله لاره نشته دے
انقلاب ، انقلاب     نوے ژوند ، نوے سوز ، نوے ساز

---

## سترګے

سينے هم ادکړه تهمتونه مے هم اوليدل
ګل چه مے خواني شوه انګارونه مے هم اوليدل

خښتي مے د زړه دينه هم تکل دے وژلو کړي
هغه اداګانے او نازونه مے هم اوليدل.

دا زما تقدير دے مانه هره لار هم دا ښے دي
ښه شوه ستا د سترګو کږ ليچونه مے هم اوليدل

# سندره

## نوټ

دا نظم ما هغه وخت اوليکلو کله چه د اتلسم اکتوبر ۱۹۷۷ء په روانه نعره بازه مبارزه کښې د بورژوا د انتهائي رجعتي سياست يو مهم دور د خپل ابتداء او انتها د عروج او زوال کال دوه او د جمهوريت د خوښولو د غير جمهوري قدمو ته هرکله کول. او د وطن په سياست بره يا ره خورده وه ما خپل فرض پوره کړل. (ساتل)

نن د احساس او هوس جنګ ستا په اوربل جوړ دے
نه څه پوهيږې د وطن ملوکے

هر څه چه دی خو تا د ننګ پګړ نه چل جوړ دے
نه څه پوهيږې د وطن ملوکے

ستا د نغمت پالونکی ستا ساده پګړی بوټ نه دی
چه وديږي مره نن هم په هغه بانه مري پوندي

خې د پردي په دلي سره بنځ شاه زلمی پوهه نه دی
د دې بيديا ګلان په دے د به رنګ سپيرلي پوهه نه دی
چرته ګنج دار چرته کنج دام چرته غزل جوړ دے
ته خو پوهيږے د وطن ملوکے

ستا په ناموس او حيا ورک ليونی چرته اوسه
د تورو غرونو مسافر شاه زلمی چرته اوسی
د خيل وطن د محبوبے سنګيالی چرته اوسی
د دغو دشتو بيديا ګانو زمری چرته اوسی
د خوئيندو ميندو نازنين ګلالی چرته اوسی
قربان هغوی شو زه اشرغوبل د بل جوړ دے
ته خو پوهيږے د وطن مارکے

ورک شوے شور د [illegible] ګړ په سندرو کښے نن
تور زه اودا ده په خبرو خبرو کښے نن
جمهور د اکبر دے په ژوندو د تنګ [illegible] و کښے نن
مجنون داخل دے په مذهب د ستمګرو کښے نن
يوسف شو خرڅ د سپين ستت په سوداګرو کښے نن
سوده سازش په هر يو کام په هر يو بل جوړ دے
ته خو پوهيږے د وطن ملوکے

مونږ وے تکمیل د خپل شهید د لوے ارمان به اوکړو
مونږ د هر چه سرخروئ د خپل مینی جانان به اوکړو
مونږ وے څه غور د کنډو د کریوان به اوکړو
مونږ وے د غروړنو په سرونو چراغان به اوکړو
مونږ وے تعمیر د تالاشوی ګلستان به اوکړو
هم هغه اوشوه دے خواچی اوادل جوړ دے
ته څه پوهیږے د وطن ملوکے!

د وطن ناوے دے ننګی نه خفګان مه کوه
چه څوک د پریږدی په هغو پسے ارمان مه کوه
د اقتدار اوږدی د ننګیږی ګمان مه کوه
ښکه زما غوندے ته ویر د خپل داستان مه کوه
هیڅ فکر مه کوه هیڅ غم د ګلستان مه کوه
ذره پرواه د شلیدلی شان کریوان مه کوه
چه ما اوژ تا وژنی هم هغوله اجل جوړ دے
چه خفه نه شے د وطن ملوکے

وطن ناوے ما مرد نه یوه ضبقه اوکړه
ما د وهمونو ماتے نکے فلسفه اوکړه

ما د احساس د اجتماع يو سر چينه اوګڼړه
ما د نيوالـه ولولو يو سلسله اوګڼړه
ما يو سوزناکه يو دردناک شان نغمه اوګڼړه
ما د ژوندون د انقلاب يوه نعره اوګڼړه

ددے دنيا رونق په علم او عمل جوړ دے
چه خفه نه شے د وطن ملوکے

د وطن نا وے ستا د جنبج په ليونو دے قسم
ستا سره پړ دلي به د ژوند کورته خلګا راوړمه
ستا د دے خاؤرے په خرسرو شاه زلمو دے قسم
چه ستا اور بل ته به پيرو نے د حيا راوړمه
ستا د دے لوخ لغرِ اولس په بے وسو دے قسم
چه خوږ و زړونو ته به دم د مسيحا راوړمه
ستا د دے اُدبږو اؤ د تږو په سلګو دے قسم
چه د غمِ ژوند ته به قرار د دے دُنيا راوړمه
د بچا خان بابا په فکر اؤ پښتو دے قسم
چه لوئے خيبر ته به ګلونه د بيديا راوړمه

زَ خپل ننګیال شهید په پاکو وینو سره دے قسم
چه سره جنډه به په دے لار د ارتقاء راوړم
زما دښکر د دښمن جنګ ته سَل په سَل جوړ دے

چه خفه نه شے د وطن سلوکے!

۲۷، دسمبر ۱۹۷۷ء

---

# ترانه

دا دے د دهقان آواز  دا دے د مزدور آواز
انقلاب، انقلاب، انقلاب، انقلاب
دا دے د شعور آواز  دا دے د جمهور آواز
انقلاب، انقلاب، انقلاب، انقلاب
دا دے د تاریخ آواز  دا دے د دے وخت آواز
انقلاب، انقلاب، انقلاب، انقلاب

دا آواز د سور صبا  دا آواز د نن آواز
دا آواز د ژوند آواز  دا د ټول وطن آواز
انقلاب، انقلاب، انقلاب، انقلاب

دا آواز د هغې جنګ چې ختم کړي د جنګ رواج
دا آغاز د هغې جنګ چې درک کړي عالمي سامراج
دا آواز د هغې جنګ چې وران ویجاړ کړي تخت تاج
دا آغاز د هغې جنګ چې امن شي د دے سماج

دا دے غیرت غیرت وطن د نعرې آواز
دا د هرے پیغلے چغه دا د هر زلمی آواز
اِنقلاب! اِنقلاب، انقلاب، انقلاب

هیڅوک د خپل فکر په وطن کښے غلامی نه کړی
هیڅوک هم د شیر په رضا خپله زندګی نه کړی
دا وطن خونه د سرمائے د ماسکانو دے
نه د جاګیردارو سردارانو نوابانو دے
نه د سود پرستو بوالهوسو خوښیانو دے
نه د امریکے د زرخرید و دلالانو دے
دا وطن، دا وطن، دا وطن، دا وطن
دا وطن، وطن د کسانانو مزدورانو دے
دا دے د خوارئ اؤ مشقت اؤ د محنت وطن
دا دے د ښائست د رنګینو اؤ محبت وطن
اِنقلاب، اِنقلاب، اِنقلاب

دا خروښ سیند ونه دا د شتونه ټول زمونږ دی
دا بجلیانے، دا لختی نهرونه ټول زمونږ دی
دا میوے باغونه ګلشنونه ټول زمونږ دی
د غم مونږ جوړ کړی محلونه ټول زمونږ دی

د غه خوشحال خو قدرت مونږ ته را بخښلی دی
دا هر څه زمونږ ده نه يو څو کسو لوټلی دی
دا دے د جونګړو څېږ، دا د لوږ و تندو شور
يو قدم يو آواز، يو انجام يو آغاز
انقلاب، انقلاب، انقلاب، انقلاب

خير د ظالم نشته صبا، دے د ظلم نن خلاف
پا نره خلاف ګل خلاف، ازغ خلاف ګلشن خلاف
دا ذره ذره د وطن، دغه ټول وطن خلاف
ظلم ظلم ظلم کا نړی ټوتي هم آواز کوی
ظلم که هر څو په خان غرور را ډېر خان ناز کوی
دا په محنت کش د يو کيمونګی جنګ آغاز کوی
ظلم زور تخت و تاج، هر يو تا هر سامراج
هر يزيد هر شمر، شمر جبر هر هټلر
هر قارون هر جلاد، هر فرعون هر شداد
ټول برباد ټول برباد، ټول برباد ټول برباد
انقلاب انقلاب، انقلاب انقلاب
زنده باد

# اغاز او انجام

کله په دالاره چې د وینو چراغان اوشو
هله ضمانت دآزادئ د سپندیوان اوشو
قتل د ضمیر چې برنا حقه د انسان اوشو
ژوند واخستمه ساه اذ برملا دحق اذان اوشو
گوره زما سترگې نم وریږي ؛ ذخندا دباره
خکه خوبرېښنا شوه چې په دې سیمه باران اوشو

# دَ سائل نو رچهاپ او ناچهاپ کتابونه

## چهاپ

۱. دَ ویر په چم کښې وارډ نغمو دے.

۲. دَ لمبو په سوری.

۳. دَ خانستونو دَ سپرلی بادونه.

۴. دَ ویښو رنګ په لمبو څنګه ښکاری؟

۵. تاله تصویر په ګلاب جوړ کړم که نا؟

۶. دړد چه دَ څمڅیکو څانګے او سپړلے.

۷. انځری سندرۀ، "افسانے"

۸ - حالات چه اور وروی

## چهاپ ته تیار

ستا دَ لمبو ځاے زما دَ پرهرونو ځاے

ایر زر چهاپ کیدونکے دے

۹. تہ په که ستائنه؟ / نثر

۱۰. هر تصویر زما تصویر / مقالے

۱۱. دَ ثقافت تاریخی بنیادونه / نثر

۱۲. په فی المیزان کښې دَ "هیواد" معنوی جاج/نثر